Kandahar. Kabul
Vol.11, No.8, Aqrab 1349
(October 1970)



# کندهار

شماره هشتم
عقرب ۱۳۴۹



دحضرت سرور کائنات (ص) دخرقی مبارک کی تاریخی ودانی چی زموږ
دمتدین اودیانت پالو نکی ټولواک همایونی معظم اعلیحضرت
په امر او هدایت ئې دکاشی کاری، میناتوری، خطاطی اود
ترمیم نور کارونه شروع شوی دی پدې عکس؛ کښی ددغه
مقدس زیارت دښکلی ودانۍ ختیځه برخه لیدل کیږی

«نور تفصیل ئې په اتم مخ کی»

کندهار

د ۱۳۴۹ لمریز کال د لړم میاشت

# خرقه مبارکه

په کندهار کښې د حضرت سرور کائنات رسول اکرم (ص) مبارکه خرقه چې د دغه مقدس زیارت د ودانۍ د اعمار کار د لوی احمدشاه بابا د زمامدارۍ

په عصر کې شروع او په وروسته کې بیا تکمیل شو په اوسنیو وختو کې دغه ودانۍ د طبیعي عواملو له کبله د ترمیم وړ ګرځېدلې وه مجدد آ زموږ د متدین او اسلام

خوښونکي ټولواک همایوني معظم اعلیحضرت په امر او هدایت سره ئې د کاشي کارۍ، مینا تورۍ د ترمیم او د خطاطۍ او ښیښه کارۍ د ښکلا کار و نه په ۱۳۴۴ کال

کې شروع او په ۱۳۴۹ کال کې به ئې عنقریب کار وپای ته ورسیږي.

کوم مواد چې د دغې ښکلې او تاریخي ودانۍ د ښکلا ته ئې سرا و سامان بخښلی دی هغه د دغې

ودانۍ په دننه او د باندنیو برخو کې د خطاطۍ کار دی چې د مبارکو سورتونو لیکل ئې په جلي خط سره د ستاینې وړ دی

چې دا هم د افغانستان د خطاطۍ په فن کې د اسلام د مدنیت د نښه ییر روښانه نمونه ګڼل کیږي د دغو کتیبو له مخې د کندهار د خلکو د خطاطۍ هنري ذوق ښه تر اندازه پیدا کېږي

بل دا چې د دې مقدسې ودانۍ ښکلا د هر لیدونکي نظر ور جلبوي هغه په هغه ودانۍ کښې د رخام د ډېرو کار

دی چې د حکاکۍ او معمارۍ په فن کې د دې هر مرینې ډېرې نوعیت او نفاست چې د جلا او ښکلا له نقطه نظره ئې لري مستازه نمونه بلل کیږي.

د حکاکۍ د صنعت دغه ټول کار چې پخوا د لاسي صنایعو په لړ کې راتلی او اوس د متبوعه حکومت په خاصه توجه ئې مواد د صنعتي

لویو دستګاوو په وسیله د هلمند د رخام د صنعتي مؤسسې یعنې د حجارۍ د فابریکې له خوا تهیه کیږي

پدې برخه کې د نوموړې مؤسسې همکارۍ د یادونې وړ ده.

د مینا تورۍ ئې چې د افغانستان د لرغونو مدنیتو

د تاریخ په بېلو بېلو ادوارو کې ئې ځلاندې دورې تېرې کړې دي او تل ئې په ځینو حفریاتو کې د دې هېواد د مدنیت تاریخي عظمت راژوندی کړی دی او

اوس ئې هم په ګران هېواد کې د دې ښکلي هنر لرغونې او په زړه پورې نخښې لیدل کیږي د ننه هم د دې مقدسې ودانۍ د ګنبدې د دننې

برخې او ځینو رواقونو د مینا تورۍ، خطاطۍ او رنګ آمیزۍ کارونه چې ۶۴ کاله د مخه یو اندازه تکمیل شوي وو اوس بشپړ او ډېر ښکلي

رنګونه ئې په هنري صورت سره ورته تازه شول چې د طلائي ځنځیر په شان د مینه کارۍ او نازک کارۍ له حیثه

دومره په زړه پورې دي چې هر کتونکی په حیرت کې اچوي نو اوس چې د دې متبرکې ودانۍ د ترمیم چارې مخ پر بشپړېدو دي پر ټولو

مسلمانانو او اسلام خوښونکو وګړو خصوصاً د کندهار پر ښاریانو چې تل د دغه مقدس زیارت لپاره دراځي

دا لازمه ده چې د دغه مقدس او متبرک ځای په ساتنه کې نور هم په مادي او معنوي لحاظ سعی وکړي او خپله ملي او اسلامي وجیبه له هم دې لارې څخه وسر ته

ورسوي څو دیوې ګړې روحیې د همکارۍ له لیارې د دغې مقدسې ودانۍ د نورو ملحقاتو او پارک کار لکه څنګه چې ښائي تکمیل او نور هم مزین کړه شي.

دامتیازخاوند :دطلوع افغان نشراتی مؤسسه
مسؤل مدیر: زلمی (بارک)

کندهار
میاشتنی خپرونه
ادبی ،تاریخی ،اجتماعی ،علمی
اداره:دشهیدانوواټ
دتاسیس کال ۱۳۳۹
دیوولسم کال اتمه گڼه
پرله پسی گڼه ۱۳۲

کالنی بیه
په کندهار کی [۲۸] افغانی
دهیوادپه داخل کی [۳۲]د
په دباندنیو هیوادو کی یوډالر

دلړم میاشت
۱۳۴۹لمریز کال

---

## ددې گڼې مضامین



دکندهاردولتې مطبعه

# دملګرو ملتو دپرانستلو
## پنځه ويشتم تلین

✡✡✡✡

دعقرب دوهمه نیټه چې دعیسوي کال دا کتوبر د۲۴ نیټې سره برابره ده دملګرو ملتو دستري جهاني او بین المللي مؤسسې د پرانستلو لویه او تاریخي ورځ ده.

داوس نه پنځه ویشت کاله دمخه په نړۍ کښې دجګړې دمخنیوي اجتماعي عدالت، مساوات او سولې دټینګولو، خپلواکۍ او بشري حقوقو دراژوندي کولو، استعمار او استثمار دمنځه وړلو او دټول عالم بشریت د لوړتیا نیکمرغۍ او هوساینې په منظور د سترو

هیوادونو د عدالت غوښتونکو حق پېژنو او بشردوستو انسانانو د نیک تدبیر او خیر غوښتنې له مخه دملګرو ملتو دجهاني مؤسسې دپرانستلو دلاري دټولو انسانانو ترمنځ کلک اتحاد او

یووالي راغی او وئې غوښتل چې دټولې نړۍ دانسانانو په ګډون یوه داسې بین المللي مؤسسه جوړه کړي چې د(جامعهٔ ملل) تر پخوانۍ ټولنې ډېره مجهزه پیاوړې او دانسانانو په

دردوخوړل شي کوم چې تر دوهمې لوئې جګړې، دمخه په نړۍ کې موجوده وه او دهغه وخت دځینو لویو هیوادونو لکه ایټالیې او داسې نورو له خوا دجامعه ملل مقررات مات شول او په نتیجه کې دوهم عمومي جنګ منځ ته راغی د ترخې خاطرې او پخوانۍ ښې تجربې له کبله دملګرو ملتو سخت پرخوا شول

دیوې خوانې دغړیتوب په منلو سره ورځ په ورځ ددغې جهاني مؤسسې حیثیت قدرت صلاحیت او ارزښت زیات کړ اودبلې خوانې داوښودله چې د نړۍ بیل بیل ملتونه او انسانان کولای شي د بیلو بیلو عقیدو افکارو وملیتونو علیحده اجتماعي او سیاسي رژیمونو باوجود خپل جنجالونه کړکیچونه او سخت

اختلافونه دسولې په توګه د خبرو دلارې حل کړي او په نړۍ کې پوره امنیت جوړ او انسانان دهوساینې او نیکمرغۍ ژوند سرته ورسوي.

دملګرې ملتو لویه جهاني مؤسسه اود هغې لوی ارګانونه:

لویه اسامبله، دامنیت شورا اقتصادي او اجتماعي شورا، دقیمومت مجلس بین المللي

عدلي محکمه او دارالانشادي.

لومړی ځل په سانفرانسسکو کې دنړۍ د پنځوسو هیوادونو له خوا منځ ته راغله چې وروسته ورو ورو نور هیوادونه هم دهغې په غړیتوب ومنل شول او اوس ئې شمیر یوسلو څلیر ویشتو ته رسیږي.

دنړۍ دوو لومړۍ او په تیره بیا دوهمې

ستري جهاني جګړې انسانانو ته زیات مادي او معنوي درانه زیانونه ورسول، پدغو جګړو کې دیوې خوا په ملیونو انسانان (نارینه او ښځې) ووژل شوه، اودبلې خوا دنړۍ دمادي

او معنوی پر مختنګ او انکشاف په لار کی د مترقی انسانانو فعالیت او مجادله ځای پر ځای ودریده بلکه زور هغه هیوادونه او انسانان چی جګړی ته ننوه داخل سوی په تنګ سول، د نړی و الو اقتصاد صنعت او تجارت سقوط و کړ بیلو بیلو ناروغیو، فقر بیکاری او

د جګړی وېری انسانان سخت تهدید او په عذاب کړل او هغو یوی داسی مقتدری مؤسسی ته ضرورت درلود چی د ټولی نړی د لویو او وړو، پر مخ تللو او مخ په انکشافو خپلواکو هېوادو نمایندهګان ګډون پکښی و کړی چی د انسانانو تر منځ جګړی له منځه یوسی سوله ټینګه کړی، بشری حقوق راژوندی او د هغو

پر ټپو نو باندی د ملهمو پټی کی کښېږدی او د ټولو پخوانیو زیانو نو جبیره په و کړی.

دغی جهانی مؤسسی په خپل پنځه ویشت کلنی عمر کی انسانانو د نیک مرغی، هوساینی او خوشحالی له پاره په زړه پوری او ګټور اقدامات و کړل، زیاتی مستعمری یی خپلواکی کړی او غواړی چی د استعمار ټغر د مځکی له سر څخه بیخی ټول کړی ځو ځله یی نړی ته د یوی بلی سختی او وېری خطرناکی جګړی څخه نجات ور کړ او اوس هم لوی جنجالونه په مخ کی لری. په هغو ټولو کی د عمومی بی وسلی کولو، اټومی او نورو داډول خطرناکو وسلو د منځه وړل شامل دی.

افغانستان د دغی ستری بین المللی موسسی یو ربښتین او وفادار غړی دی، زموږ هیواد په هر وخت کی د ملګرو ملتو د سترو اساساتو او بهترینو بشری مقرراتو پیروی کړی او کوی ئی او په دی ډول دیوی خواد خپلو هیوادوالو د نیک مرغی د پاره د ملګرو ملتو د ګټورو پروګرامونو څخه استفاده کوی او د بلی خوا د هغی د حمایت د لاری د نړی سولی او امنیت ته ګټه رسوی.

نن چی د ملګرو ملتو د جهانی مؤسسی د پرانستلو ورځ ده موږ د نورو نړی و الو په څیر دغه ستره ورځ نمانځو او د هغی د خدمتو ستاینه کوو او باور لرو چی د هغی په تدبیر او فعالیت به له نړی څخه جګړه او داسی نور جنجالونه ورک شی.

ځینی پاته محکوم هیوادونه به خپلواک شی او په نتیجه کی به په نړیه کی دایمی سوله او امنیت منځ ته راشی.

په پای کی د دغی ستری او تاریخی ورځی د راتلګ له کبله ټولو نړی والو ته مبارکی وایو د خپلو خلکو او نړی والو دایمی نیک مرغی او لوړ تیا د ملګرو ملتو په سیوری کی غواړو.

## کار

کار یو څرګند قانون دی چی د ژوند له مفهوم سره تړلی دی بیکاری د مرګ معنا بښئی. ستا عزم او اراده که د کار سره تړلی وی نو د غمو نو د غلامی څخه به آزاد شی.

که کار نه وای نه پوهیږم چی انسان به خپل ژوند څنګه سر ته رساوه؟

. کار کول ننګ ندی بلکه بیکاری د ټولو بی ننګیو سر دی.

[هرهذبور]



# د ملګرو ملتو

## د مؤسسې د منځ ته راتلو کال

د لېږم ۲ نېټه چې د ملګرو ملتو جهانی ورځ ده د غه ورځ په افغانستان او ټوله نړۍ کې په خاص ډول مراسمو سره نمانځل کېږي زه پدې ځای کې غواړم چې د دغې بین المللی مؤسسې د تأسیس او د بېلو بېلو ارګانونو او د هغو د وظیفو او مسئولیتونو په باب ګنې معلومات د کندهار د مجلې ګرانو لوستونکو ته وړاندې کړم .

د ۱۹۴۵ کال د جون په ۲۶ نېټه د غه جهانی مؤسسه د نړۍ د یوزر واوه سو ویلنو تنو نه اضافه د پنځوسو هیوادو

نمایندګان چې په نړۍ کې د ښه تفاهم د راوستلو په غرض په سانفرانسسکو کې راټول شوي وه او په همدغه ورځ

ئې د ملګرو ملتو منشور یعنې د ملګرو ملتو اساسنامه امضا کړه او څو هفتې وروسته پولینډ چې د ملګرو ملتو د اعلامیې د لوموړیو

لاس لیک کوونکو څخه په ۱۹۴۲ کې و او ولې نه کړای شوای چې په کنفرانس کې ګډون وکړي د ملګرو ملتو منشور ئې لاس لیک کړ . په ۱۹۴۶ کال کښې څلور هیوادونه ئې په عضویت کښې و منل شوه همدار نګه په ۱۹۴۷ کال کې دوه هیوادونه او په ۱۹۴۸-۴۹-۵۰ کلو کې یو هیواد او په ۱۹۵۵ کال کې ئې نور ۱۶ هـیــوا دونــه ورپسې په ۱۹۵۲ کال کې څلور هیوادونه بیا په ۱۹۵۷ کال کې دوه هیوادونه او په ۱۹۵۸ کال کې یو هیواد او په ۱۹۶۰ کال کې ۱۷ هیوادونه همدا ډول په ۱۹۶۱ع کال کې څلور نور هیوادونه ددې مؤسسې په عضویت کې شامل شول چې پدې ترتیب ئې په ۱۹۶۱ کال کې د غړو شمېر و (۱۱۰) ته ورسیدی .

## د ملګرو ملتو بیل

### بېل ارګانونه او د هغو وظیفې

### لویه اسامبله

داد ملګرو ملتو اصلی رکن دی

چې هلته عمومی مشوری مباحثې کېږي پارلمان او د شورا مجلس ته ورته ده لویه اسامبله چې په کال کې یو پلا دایرېږي حق لري چې د ملګرو ملتو د

منشور په حدود کې د ټولو مسئلو په باره کې بحث او مذاکره وکړي .

دغه رنګه حق لري چې د ملګرو ملتو د ټولو ارګانونو د وظایفو او اختیاراتو په هکله خبري وکړي لویه

اسامبله کولای شي هغه څه چې د عمومي همکاری د پراختیا په باره کې د سیاسی اجتماعی اقتصادی ثقافتی تربیوی او روغتیا د چارو په هکله لازمي وګڼي د

ملګرو ملتو او نورو ارګانونو ته د هغو توصیه وکړي .

لویې اسامبلې د بین المللی سولې او امنیت د کومك د پاره د سولې د

نظارت یو کمیسیون او یوه اقداماتی کمیټه تاسیس کړیده .

هر غړی هیواد په لویه اسامبله کی نماینده لری چه هم کولای شی د خپل غړو شمیر په غونډو کښی پنځو تنو ته ورسوی بیا هم هر نماینده تر یوی رای زیات حق نلری .

## د امنیت شورا

د نړی د سولی او امنیت ابتدائی مسؤلیت دد غه شورا په غاړه دی ، د یوولسو غړو څخه جوړه شوی ده چی پنځه غړی یی دایمی او شپږ

نور ئی لویه اسامبله ټاکی او پنځه دایمی غړی ئـی فرانسه شوروی اتحاد امریکا برتانیه او ملی چین دی .

نور غیر دایمی شپږ غړی ئی عمومی اسامبله د دوو کالو د پاره انتخا بوی چی

د دوو کالو تـر بشپړیدو بلافاصله بیا نسی کولای انتخاب شی .

هر غـړی د مجلس د یوی رایی ورکونکی دی .

د مجلس په ټولو مسایلو او موضوعاتو کی ئی طرز

او روش د اداری مجلس دی .

د دایمی پنځو غړو په شمول اود موافقو رایو په اړلو سره جوړیږی .

دا قاعده د لویو هیوادو د رایو په اتفاق او په عمومی اصطلاح سره (ویټو حق) پیژندل شوی ده .

د دایمی غړو څخه د یو د رایی نه ورکول د ویټو په رایی سره نه تلقی کیږی .

## اجتماعی او اقتصادی مجلس

اجتماعی او اقتصادی مجلس چی د لوئی اسامبلی تر نظر لاندی وظیفه اجرا کوی .

کوښش کوی چی په نړی کی د انسانانو د سعادت ، کامیابی عدالت په منځ ته راوړلو کی زیار وباسی او خپل پیشنهادونه

او نور نظریات په دغـه هکله لوئی اسامبلی ته سپاری .

د لزوم په وخت کی هیوادونه بین المللی کنفرانس ته رادعوت وی .

اجتماعی او اقتصادی مجلس د ۱۸ غړو هیوادو څخه جوړ شوی

دی چی شپږ غړی ئی هر کال د لوئی اسامبلی لخوا د ۳ کالو د پاره ټاکل کیږی او د خپلو وظیفو د سرته رسولو د پاره هر څو پلا چی ئی لازم وګڼی مجلس جوړوی .

د اجتماعی او اقتصادی مجلس تصمیمونه د مجلس د غړو د رایو په اکثریت سره نیول کیږی .

## د قیمومت مجلس

د ملکرو ملتو منشور په خپل د قدروړ موادو کی د خود مختاری مځکو چی د خود مختاری مرحلی ته نه دی رسیدلی اعلام کړی دی چی پـدې اعلامیه کښی

څرګنده شویده چی لومړی د دغو برخو د اوسیدونکو ګټی ډیری د اهمیت وړ دی .

دوهم هغه غړی هیوادونه چی د دې سیمو د چارو د اداری د پاره مامور شوی دی .

د خپل د غه ماموریت او پاکی وظیفی د سرته رسولو په باب دا لاندی وعدی قبولی کړیدی .

د هغو د اقتصادی سیاسی اجتماعی او ثقافتی چارو

د ترقی او پر مختګ موجبات راغونډ کړی خود مختاری ته دی پراخوالی ورکړی .

د بین المللی سولی او امنیت سره دی مـرستـه وکړی .

# بین المللی عدلی محکمه

د ملګرو ملتو د قضائي چارو اصلي رکن بین المللی عدلی محکمه ده چې ځای ئې د هالنډ په پایتخت لاهه کښې دی او د پنځلسو تنو قاضیانو څخه په مستقله توګه د امنیت د شورې د لوی اسامبلي څخه ټاکل شوی جوړېږي:

بین المللی عدلی محکمه د ملګرو ملتو د اساسنامې جزدی عدلی وظیفې سرته رسوي.

نو د ملګرو ملتو هر غړی په خپل سر هغې ته مراجعه کولای سي او هم وظیفه لري د خپلې دعوې په برخه کې دغې محکمې ته رجوع وکړي د دیوان د قضاوت او صلاحیت حدود په ټولو هغو چارو کښې ګډون لري چې دعوه لرونکي خواوې هغه ته مراجعه کوي او هم دا

رنګه ټولو هغه مسایلو چې د ملګرو ملتو په منشور تړونو او وعدو کښې څرګند شوي دي محترم ګڼل کېږي،

په حقوقي مسایلو سربېره دا محکمه د حقوقي چارو نه پرته یوه بله دا وظیفه هم لري چې د حقوقي مسایلو نظر د مشورې له لیاري نظریه ورکوي.

## دارلانشا

د ملګرو ملتو د مؤسسې پراخې او پلول پلول اداري چارې د هغه د شپږم ارکان یعنې دارلانشا په وسیله سرته رسېږي دغه مؤسسه ټول کال د نوروارګانو په کار او خدمت بوخته ده او د هغوی اساسي نقشه او دستورالعملونه په خپل وخت کې اجرا کوي

د دغې مؤسسې په مخ کښې د ملګرو ملتو سرمنشي قرار لري.



ښاغلي اوتانت د ملګرو ملتو سرمنشي

خو د امنیت د شورا په پیشنهاد او د عمومي ټولنې په تصویب په دغه وظیفه ټاکل کېږي

د ۱۹۴٦ کال د فرورۍ په ۴ نېټه د ناروې د هیواد د هغه وخت خارجه وزیر فقید ټریګولي د پنځو کلو له لپاره په دغه وظیفه وټاکل شو او لومړنی اسامبلي د پنځمې دورې په غونډه کې نوموړی دوهم ځل د درو کالو لپاره وټاکی د ۱۹۵۴ کال د نومبر په میاشت کښې ئې استعفا وکړه.

په ۱۹۵۴ کال د اپریل په ۷ نېټه د سویډن د دولت وزیر فقید همرشولډ د نوموړي پرځای د ملګرو ملتو د سرمنشي په حیث وټاکل شو.

نوموړی په ۱۹۵۷ کال کښې بیا په دغه وظیفه د پنځو کالو لپاره وټاکل شو.

خو د ۱۹٦۱ کال د دسمبر په ۸ نېټه په افریقا کې د الوتکې د رالوېدو په پېښه کې مړ شو.

او لوئي اسامبلي په ملګرو ملتو کې د برما لوی سفیر او نماینده ښاغلي اوتانت د ۱۹٦۳ کال د اپریل تر ۱۰ نیټې پورې د سرمنشي د کفیل په حیث وټاکه او تر هغه وروسته د ملګرو ملتو د سرمنشي په حیث وټاکل شو او اوس هم د دغه وظیفه پر مخ بیائي.

تهیه کوونکی «غ»

لیکوونکی سید حسام الدین (حسام)

# په ټولنه کې د مثبتو افکارو اغیزه

د هرې انساني ټولنې وګړي ددې استعدادلري چې په ژوندانه کې د اقتصادي، اجتماعي، فرهنګي، سیاسي او ترېبوي لحاظه مخ په وړاندې قدمونه اوچت خپلې اړتیاوې لیرې او د خپلو طبیعي استعدادونو په مرسته ژوند ته د خپلو اړتیاوو د تأمین په خاطر تغیر ورکړي او د نورو پر مخ وړاندې ټولنو او هیوادو د تجربو او ګټورو

اقداماتو څخه د خپل توان او طاقت په اندازه ګټه واخلي او خپل فردي اجتماعي او ملي ژوند ته نور هم پراختیا او وده ورکړي.

خو برعکس که د یوې ټولنې وګړي د خپلو اجتماعي چارو په سمبالولو او د نیمګړ تیاوو په تأمین کې د خپلو استعدادونو څخه ګټه وانه خلي او د نورو پر مخ تللو هیوادو او ټولنو له تجربو څخه

استفاده ونه کړي او خپل اقتصادي، اجتماعي، سیاسي او فرهنګي ژوند نور و په اراده متکي او پر خپل ځان او خپل ملي یووالي اتکا او باور ونه لري او ځر ګنده ده چې ددا ډول ټولنو او هیوادو په ذهنه کې د اجتماعي شعور د عوامل وریښوو ده نه ده کړي او دا ډول ټولنې د یوه ستر آبرومند ژوند کولو په راز او مفهوم نه دي پوهیدلي.

حقیقت دادی چې یو اجتماعي او اقتصادي انکشاف او وړاندې تګ هغه وخت تحقیق پیدا کوي چې د یوې ټولنې تولیدي قواوې وده او تکامل وکړي، د وګړو ترمنځ ئې په افکارو او ذهنیت کې مثبتو احساساتو ته وده ورکړې وي.

په خپلو منځو کې ئې د فدا کارۍ متقابل احترام، د ټولنې او د هیواد د حقوقو درناوی، او په کارونو کې د مسئولیتونو د درک احساس او افکار را بیدار او هغه پسې غښتلي او قوي کړي.

ځکه په تشو خبرو، د عیني او ذهني شرایطو له تحلیل او د شرایطو او امکاناتو له منځته راتلو څخه پرته د هر څه لاس په لستوڼي غوښتل د یوې ټولنې اقتصادي، سیاسي او اجتماعي موجودیت له ړا ګه وهل او د ټولنې په سرنوشت لوبې کول دي او تاریخ هم دا ډول بې ځایه

او منفي احساسات محکوم او فاعلین ئې د ټولنې په وړاندې بې عزته له منځه وړي دي.

د یوې ټولنې د هر پرمختګ او بدلون افکار باید مثبت او واقعي وي.

د ټولنې په مادي او معنوي ژوند کې ژورې ریښې ولري په ټولنه کې عمومي ذهنیت را ویښ او افکار ئې د انکشاف او د خپلې ټولنې چارو د ښه تنظیم د سم درک سرحد ته رسیدلي وي.

په دغه عصر کې چې د بشري ژوندستر و قواوو د ساینس، تخنیک او نورو علمي انکشافاتو په رڼا کې د عالي تکامل په حال کې واقع او بشري ټولنې ئې یو او بل ته دا ډول سره رانیژدې کړي چې ټوله په بین المللي سویه یو او بل ته د متقابل احترام او په سوله کې د ګډ ژوند ستر و اساساتو په پیروۍ د ټولو ✡

هغو خنډونو او بدبختیو پر ضد چې هر آن د بشر د غه دزرو کلونو تمدن تهدیدوي دسوچه ډکـه مبارزه وکړي.

د نیکه مرغه نن چې زموږ په ګران هیواد کې دوه اندي تګ، ملي او اجتماعي چارو د سمون او په هیواد کښې د اقتصادي، صناعتي، عرفاني، عمراني، زراعتي صحي او د نورو انکشافي پلانونو او اصلاحي پروژو د تطبیق په هیله کلکه اراده راپیدا شویده او وینو چې همدا اوس یو شمیر اصلاحي او انکشافي پروژې بشپړه او یا د بشپړ کیدو سرحد ته ورنږدې شویدي.

خوسره د دغه ټولو بیا د عمومي هوسا ژوند او عمومي وړاندې والي په لار کې زیاتې نیمګړتیاوې چې د بې سوادۍ، بې کورۍ، ناروغۍ، بیکارۍ او نورو ناوړو مفاسدو څخه عبارت دي دیوه خنډ په حیث واقع او له منځه وړل غواړي.

خو د دې لپاره چې موږ په دغه نیم بشپړ پرمختګونو قناعت نوی کړی.

فرض دی چې د افغاني ټولنې هر وګړی د متقابل اعتماد او یووالي په رڼا کې د پرمختللو هیوادو په ګړندی کاروان پسې ګامونه چټک د ځان ځاني او بې اعتمادۍ منفي احساسات له ځانـه لیرې کړي او پر ځای ئې د اعتماد او ورورولي مثبت احساس په ځان کې پیاوړی او د خپلې ټولنې د شرایطو د خلاق تحلیل په مرسته د ملي وړاندې تګ راز درک، د خبرو پر ځای د خپل مثبتو کړو فیصدی زیاته، د ملي او اجتماعي چارو د ښه تنظیم .د مسئولیت مثبت احساس پیدا کړي او بالاخره د خپلواک او یو موټي افغانستان د سرلوړي په خاطر د اساسي قانون او ملي وثیقې ستر و ارزښتونو سره سم خپل ملي ټولنه او مترقي ایډیالوژۍ پر مخ بوزي.

# افکار

هغه ټولنه چې د ځان د بهبود له پاره نوابغ زیږوي معلوم داره ئې د درنو مصائبو دوره تیره کړې وي.

(رایـنتالي)



د ظلم نتیجه کور ورانی ده او د عدالت نتیجه کورودانی ده هغه څوک چې د دې دواړو څخه هر یو کوي نتیجه به ئې پخپله پر ده د ورایه معلومه وي.

(ژاربول)



تاسو درختې کرې او د هغه له میوو څخه ځان مستفید ګرزوئ ولې زه نه پوهیږم چې تاسې ولې د یارانې باغ نه کرئ ځکه د هغه میوه د ژوند تر ټولو خوږو خوراکیات شیرین وي.

(سقراط)



د زماني طوفانو زما پر سر د پیرې سپینه واوره واوروله د عمر ګرد نو مې د بدن پوستوچ کړ مګر د زړه له کوره مې د محبت میلمه لاندې وتلی.

(بیناس)



د زیاتو خلکو د ګناه کارې سبب داندی چې پخپله ئې کومه ګناه کړې وي بلکه سبب ئې دا دی چې نورو ته ئې د ګناه کولو موقع ورکړې وي.

(ارسطو)

مرتب: عبدالعلی د پوهنې لوی مدیر

# خرقه مبارکه

دخرقی شریفې څرنګوالی:

دحضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم مبارکه خرقه اوقاقمه دوه یو بل ته ورته کلمې دي چې په اصطلاح کې خلک هغه ورته قاقمه بولي .

دوه لستوڼې ئې دقاقمې تر اوږدوالي لنډ دي خرقه مبارکه داوبښ د نازکو اوخالصو وړیو څخه جوړه شوې او آسماني رنګ لري ـ علاوه پر هغه یو ډول مخصوص بریښ او تجلۍ هم لري خرقه مبارکه د انسان د جګوالي په تناسب لنډه ښکاري ـ استراو فراوېزه لري دمخ دوه پیشونه ئې نسبتاً زاړه او په یو وړین تار رفوغ شوي دي .



صدراعظم ښاغلی نوراحمد اعتمادی دهیواد د شمالي او لویدیځو ولایاتو دسفر په ترځ کې دکندهار په خرقه مبارکه کې دعا کوي په عکس کې ښاغلی محمد صدیق دکندهار والي هم لیدل کیږي چې دده په خاصه پاملرنه د دغې مقدسې ودانۍ د ترمیم او ښکلا کار عنقریب پای ته رسیږي

# دخرقې مبارکې سوابق



دخرقې شریفې دودانۍ جنوبي برخه چې دخطاطۍ او کاشي کارۍ دښکلاکارۍ پای ته رسیدلې دی

داهغه خرقه مبارکه ده چې حضرت رسول اکرم[ص] او دهغه پاک کورنۍ په خپلو مبارکو لاسو ګنډلې ده او حضرت پیغمبر[ص] په دعمر په آخرو کې اغوستل.

په حجت الوداع او دناروغۍ په ورځو او هم د وفات کیدو په وخت کې ئې اغوستې وه حضرت محمد[ص] دژوند په وروستي ګړیو کې حضرت عمر[رض] او حضرت علي[رض] ته وصیت وکی چې دغه جامه دی (په یمن کې) ابي عمر اوویس بن العامر القرني ته وسپاری.

د حضرت رسول اکرم[ص] تر وفات وروسته ددوی د مبارک امر سره سم حضرت عمر[رض] او حضرت علي [رض] مبارکه خرقه ویس بن العامر القرني ته وسپارل.

تر هغه وخت پورې چې حضرت ویس قرني ژوندی ؤ خرقه مبارکه ئې پر خپل سر باندې ساتل د حضرت ویس قرني تر وفات وروسته خرقه مبارکه د یمن څخه را وېل شوه او د حرا په غار کې کښېښودل شوه څو چې شیخ الاولیا جناب دوست محمد (قدس سره) د وخت یو صالح سړی خرقه مبارکه د حرا د غاره څخه د ټولو مسلمانانو د زیارت کولو د پاره بغداد ته یووړه- خرقه

مبارکه د (یلدرم بایزید) بن سلطان مراد بن سلطان ارخان بن سلطان قراعثمان لو (د روم دعثماني سلطنت مؤسس) تر زماني پورې چې ابوالمنصور امیر تیمور کورګان (دافغانستان د تیموریانو سرسلسله) بغداد فتح کړ په هغه ځای کې پاته وه.

په ۸۰۵ هجري کال کې کله چې امیر تیمور کورګان په جنګ کې یلدرم بایزید ته ماتې ورکړه او بغداد ئې ونیو نو ددې تاریخي سفر څخه د راګرزیدلو په وخت کې ئې مبارکه خرقه د متولیانو سره د بغدا د څخه د هغه وخت دارالسلطنت د سمرقند ښار ته راوړه او تر ۱۰۷۴ هجري کال پورې په هغه ځای کې وه.

په دغه کال د ختیځ ترکستان حکمران ابوسعید ارغلان چې دامیر تیمور کورګان د اولادې څخه شمیرل کیدی وغوښتل چې د محمد حبیب او شیخ محمد نیاز په واسطه

مبارکه خرقه د سمرقند څخه چیني ترکستان ته یوسي. پدې وخت کې دوو تنو متولیانو شیخ اقا محمد او شیخ نظر محمد موقع غنیمت

وبلل او خرقه مبارکه ئې بلخ ته راوړل ترڅو چې د چیني ترکستان د حکمران ابوسعید ارغلان د تصرف څخه خوندي پاتې شي.

خرقه مبارکه تر ۱۱۰۹ هجري کال پورې چې د سبحان قلي خان د حکومت دوره وه پنځه دیرش کاله په بلخ کې پاتې شوه په همدې کال دوو تنو متولیانو

> د حضرت محمد [ص] له وینا ؤ څخه
>
> څوک چې موږ پر یو کار مقرر کړو او معاش ورته ورکړو نو پر ته له معاش څخه چې نور شي اخلي خیانت دی.
>
> [ابوداؤد]
>
> قاضي ته نه ښایي چې د غضب په حال کښې فتوی ورکړي.
>
> [بخاري مسلم]

شیخ محمد ضیا او شیخ محمد نیاز وغوښتل چې خرقه مبارکه د بدخشان او چترال څخه تیره کړي او هندته ئې یوسي.
د بدخشان والي امیر یار بیګ

د دیني مفادو په غرض اجازه ورنکړه چې خرقه مبارکه دې د بدخشان د خاورې څخه وایستل شي او د جوزګون په ښار کې ئې مناسب ځای ورته وټاکی او هلته ئې

کښېښود ل چې په همدې مناسبت ئې د جوزګون د ښار نوم په فیض آباد (د اوسني بدخشان مرکز) تبدیل کړ تر ۱۱۸۱ هجري کال پورې څلور اویا کاله خرقه شریفه په فیض آباد کې پاته شول او په

همدې سنه کښې اعلیحضرت احمدشاه بابا خرقه مبارکه په ډیر عزت او اکرام سره د فیض آباد څخه د پروان، کابل، میدان، غزني مقر، قلات او شهرصفا د لیارې کندهار ته راوړل.

د کابل په ښار کې د خلکو د زیارت کولو د پاره خرقه مبارکه د علي آباد په لمنه کې تقریباً اته میاشتې کښېښو دل شول او د ا ځای تر هغه وروسته د سخي په زیارت مسمی شو.

کله چې خرقه مبارکه د فیض آباد څخه راوړل کېده پر لارې پخواني متولیانو د هغه دوا پر ه لستوڼي پرې کړه او بخارا ته ولاړل.

د ۱۱۸۲ هجري کال د لومړي خور په نهمه خرقه مبارکه کندهار ته راوړسېدل او په زړه جامع کې کښېښو دل شول - زړه جامع په هغه وخت کې د کندهار لومړی نوی مسجد ؤ چې په ۱۱۷۲ هجري کال کې د اعلیحضرت

احمدشاه بابا په امر د بردراني په جنوبي برخه کې ودان شوی ؤ - دا زړه جامع تر اوسه پورې د کندهار د ښار په څلورمه ناحیه کې شته.

خرقه مبارکه تر ۱۱۹٦ هجري کال پورې په هغه جامع کې پر ته وه - د خرقې مبارکې اوسنی ودانۍ چې د اعلیحضرت احمدشاه بابا په امر شروع شوې وه د تیمورشاه په عصر کې پای ته ورسیده او خرقه مبارکه ورته راوړل شوه.

---

## د پورتني معلوماتو ماخذونه

پورتني معلومات د کندهار د خرقې شریفې د تاریخ له کتابه څخه چې د جاغلي عزیزالدین خان وکیلي تألیف دی او د اعلیحضرت احمدشاه بابا د لښکر کښې له کتاب څخه چې د محمد انور هروي تألیف دی اخیستل شوي دي.

د اعلیحضرت احمدشاه بابا تر زمانی دمخه خواجه ګانو او متولیانو عادت درلود چی په جمعه او اختر و او د مصائبو په وخت کی به ئی د خرقی شریفی خو نه خلاصول ـ کله به

ئی صندوق هم پرانستی او حتی بعضی وختونه به ئی د مخصوص صندوقه را ایستل او عندالاقتضا به ئی دیوه ښار څخه و بل ښار ته وړل .

اعلیحضرت احمد شاه بابا دا کار منعه کړ او امرئی وکی چی بیله د شاه له حکم څخه دی د صندوق سر نه خلاصیږی په همدې مناسبت ئی یو کال په خپله د صندوق کلی د ځان سره و ساتل .

او پدې وختو کی چی دد غه مقدس زیارت ودانی د ترمیم وړ وګرزیده نو زموږ د دیانت پالونکی ټولواك همایونی معظم اعلیحضرت په امر او

هدایت ئی د ترمیم کار د کندهار د والی ښاغلی محمدصدیق په پاملرنه او د



ښاغلی محمدافضل «شیر دل»



دحضرت سرور کائنات د خرقی مبارکې د ودانۍ ختیځه برخه چی دخطاطی او کاشی کاری د ښکلا کارئی ټول ه بشپړ شویدی

کندهار د ښاروال ښاغلی محمدافضل «شیر دل په سرپرستی په ۱۳۴۳ کال کښی شروع شو او عنقریب په سرته ورسیږی

د کاشی کاری، خطاطی، میناتوری، او ښېښه کاری د کار کړیغی په تکمیلو لو کی ئې په فنی ډول د غو لاندینیو کسانو برخه اخیستی ده .
د معماری کارئی ښاغلو حاجی محمد نعیم مهندس او نصر الله فنی مدیر .

د خطاطی کارئې مشهور خطاط ښاغلی سید محمد د میناتوری کارئی نامی میناتور ښاغلی سید محمود .
د ښیښه کاری کارئی ښاغلی حفیظ الله

او د کاشی کاری کارئې د مشهور کاشی کار حاجی خیرمحمد کلال په ذریعه چی د نوموړی زیار او زحمت د ستاینې وړ دی .        «پای»

لیکوونکی «غروال»

# صوفي عبدالحمید

## د کندهار هغه هنرمند چې په دوا ړو لاسو یې

### اوه ډوله خط لیکي

زموږ د ښار په سوق او زړو خلک د جمعې په شپه خرقې مبارکې او د مسوی مبارک زیارت او جامع ته ورځي. د دوی توجه د دغو ځایو خطاطي او پر دیوال

خطي نقاشۍ جلبوي نو دا چې د هنر او ادبیاتو په دې ګڼه کې مو د دغو خطو او نقاشیو لیکوونکی معرفي کړی وي وبه وایو چې کندهار

په تېرو څو پېړیو کې د هنر له دغې برخې څخه نه یوازې بې برخې نه ؤ بلکه صوفي عبدالحمید غوندې هنرمند

یې په خپل غېږ کې روزلی ؤ چې په راسته او چپه لاس به یې حیرت پاڅوونکې خطاطي او نقاشي کوله.

مرحوم صوفي چې اوه کاله ترمخه په کابل کې وفات شو پنځه اتیا کاله وړاندې په کندهار کې زېږېدلی ؤ، د ده پلار نصرالله خان نومېده او کورنۍ یې مهذبه او هنروره.

صوفي عبدالحمید د خطاطۍ هنر په کندهار او هرات کې زده



مرحوم صوفي عبدالحمید

کړ او کندهاري میر عطا محمد شاه خطاط د ده مستقیم او غیر مستقیم استادو. دا هنرمند د ۲۲ کالو ؤ چې د امیر حبیب الله خان له خوا مؤظف سو چې د منزلباغ د تخت هنري نګراني وکړي او د خرقې مبارکې د ګنبدې داخلي رنګ آمېزي او خطاطي تکمیل کړي.

د دغو لویو کارو د سرته رسولو څخه وروسته ۵۸ کاله ترڅنګ پخوا د کابل حربي فابریکې ته تبدیل شو.

څرنګه چې دا نابغه شخصیت په ریاضي او فزیک کې هم وارد ؤ نو هلته یې یو اتومات توپک او یوه د مسافې معلومولو آله اختراع کړه د عمر په نورو برخو کې چې فني او تخنیکي کارونه ورحواله کېده د (المیزان) آله یې جوړه کړه چې د جنترۍ په جوړولو کې یې کار ځینې اخیستل کېږي.

مرحوم صوفي د عمر یوه برخه د نړۍ په سیل هم تېره کړې ده.

(پاته په ۱٤ مخ کې)

# د لاس لیک څخه د باطني پوهنو

## اسرار و څرک څرنګه راایستل کیږي



پوښتني استفهامي جملې په تاسي په شك کښي اچولې یاست یقین وکړئ چې له لاس لیك څخه د اخلاقي

پوهنو اسرار و څرك په ښه شان سره ایستل کیږي چې په لاندنیو کرښو کښي به ئې په لنډه صورت سره ښکاره وشي.

### ښه لیك او بد لیك

—□□✻□□—

تاسي ته به ممکن معلومه وي چې اکثره و تلې پوهان خوش خطي نلري یعني لیك ئې غیر منظم او د ویلو

قابل نه وي د دې پوازني سبب دادي چې دوي د لیکني په وخت کښي له چټکې څخه کار اخلي او یا ور وسته تر

لیکني د زیات تشویش او تردد لرلو په اثر سره د څه اضافه توب او یا کمبود په وجه پر بعضو جملو باندې

خطو نه کشوي نو طبعاً ئې خط بد ډول ښکاریږي بله خبره لا داده چې د علمي مشاغلو د ډیر ښت په نسبت

سره نه غواړي چې عمر دې په خوش خطي سره ضایع شي.

### په لاس لیك کښي د لیکو طرفونه

—ـــ—

په لاس لیك کښي دایماً د لیکو طرفونه کاهي لوړاهي کښته کاهي مستوي، او کاهي ښکاره وي له مستوي لیکي څخه د لیکوونکی د احوال حیرت او د احتراس شدت ښکاریږي په لوړه لیکه کښي تکبر او د اقدام د نشاط دلیل پروت دي - کښته لیکه د لیکوونکی ناروغي، جبن او د ارادې ضعف ښیي او د غه رنګه کږه لیکه ئې د مجاهدې او هغه شي د التماس دلیل کیږي چې په استطاعت کښي ئې نه وي.

### د حرفو د اشکالو اهمیت

### په لاس لیك کښي

د حروفو اشکال د لیکوونکی له ذاتي اخلاق سره پوره اړیکي لري د متناسبو حروفو لیکوونکي پر انتظام او ترتیب باندې زښت ټینګ وي ډیر مین او له خوا پاکي سره خاصه علاقه ښکاره کوي مګر

له بده مرغه څخه د حسن خلك له ښه خویه څخه پر مخ خلاص دي د نیژدې پر لـه پوړو حروفو لیکوونـکي هغه

وخت د زیات صبر او انتظار څښتن وي چې په لیکنه کې ئې (جیمان، ح کاني، سینونه او شینونه) زیات و لیدل شي داوږدو حروفو لیکوونکي

ډیر مستریح او باوقاره وي د موښلپه ډول سوو حروفو لیکوونکي د زیات عجلت او اقتصاد څښتن وي بالعکس

د جدا جدا او ټوټې سوو حروفو لیکوونکي چې په لیك کې ئې تناسب حجم او د شکل مساوي توب موجود وي معتدل مزاجه او د عافیت

غوښتلو خواته زیاته هڅه کوي د غیر متناسبو حروفو لیکوونکي متقلب، متردده

او ژر منقاد کیدوونکي وي د مستدق او مرتب لیك

لیکوونکي چې په کلمو او لیکو کښي ئې څه وسعت موجود وي د مزاج د لطف او عواطفو د رقت څښتن دي

(پاتې ۱٤۰ مخ کې)

(د ۱۳ مخ پاته)

## صوفی عبد الحمید

د دوهمی جګړی په زمانه کی په المان کښی ؤ بیا یی د یورپ ځینی نور هیوادونه امریکا، چین او جاپان لی و کتل او بیا چی هیواد ته راغی نو د مطبعی چاری او په پای کی د ضراب خانی کار و نه ور وسپارل شوه ·

نن چی مونږ په خپل لاس کی د افغانستان هره سکه که فلزی وی او که کاغذی اړوو نو د هغه نقش د دغه لوی سړی د ماهرو ګوتو محصول دی ·

په خطاطی کی د صوفی ولی محمد (چی د نومونړی له اشنایانو څخه دی) په قول اوه پړوله خط لیکی او دا یی هم په د واړو لاسو لیکلی شوای ·

د صوفی عبدالحمید په ژوند کښی هغه په یوه اخباری مصاحبه کښی ویلی دی چی په پخوانیو خطاطانو کښی یی د میر عماد او میرعلی خطونه اعجاز بللی دی، او په اوسنیو خطاطانو کښی یی د بناغلی عزیز الدین وکیلی (چی هغه هم کندهاری دی) خط ستایلی دی ·

صوفی سر بیره پر نوره هنرمندی شاعر هم ؤ چی اکثره منظوم آثار یی چاپ سوی او ځینی یی بی چاپه پاته دی ·

د صوفی عبدالحمید ورونه اوس هم سته او د کندهار د شیر علی خان په کوڅه کی اوسیږی ·

(د ۱۲ مخ پاته)

## د لاس لیک څخه

د لویو لویو حروفو لیکونکی چی څه توسعه لی په الفاظو کی ښکاریږی زیات مصروف او سخی وی همدغه ډول د دقیقو او شلیدلو الفاظو لیکونکی حریص او زیات مقتصد لیدل کیږی که خط په حروفو کی لیه لامونه او (ف) ګانی نیغی ولاړی وی نو و پوهیږی چی د داسی سبک څښتن سست فکره او په جګړو، مناقشو کی صبور دی د مایل خط لیکونکی چی حروف ئی لنډې لفوظونه او لامونه ولری بی صبره او ژر ژر فکر ځغلونکی دی د داسی خط لیکونکی چی (ب) یی له (ف) څخه ۱۰ بیلیږی چابک وار خطا په خپل کار ؤ بار کی چندانی فکر نه وهی ·

عبدالقدوس (ث)

## خلک

### او

### شاعر

یوه ورځ هغه لوی او پراخ میدان هغه لوی او اوچت غره ته وویل:

(ستا په وچولو کی د ژوند نښه هیڅ نشته ستا په مخ باندی همیشه د سیلیو او بادونو څپیړی لګیږی) ·

په همدغه وخت کی د ولس خلګو شاعر ته وویل:

(ستاسو کار تل له خیال او اندیښنو سره دی او ستا وجود هیڅ ندی پکار) ·

سنګین غره په جواب کی وویل:

(زه یم چی ستا له میني نه هر راز بوټی را کاږم، د غه می سوزونکی تودوښه په خپل سایه دم باندی سړومه ·

د طوفانی وریځو مخه نیسم پخپلو ګوتو د واورو بخړی جوړوم او ذخیره کوم یی زما له سینی څخه د او بو لښتی روانیږی او تا ته پیغام دروړی ·

شاعر هم خلکو ته وویل :

پریږدی چی زه سر پر زنګانه کښیږدم او فکر وکړم ایا تاسو نه وینی چی زما د زړه له چینی نه ډیری خوږی او به راخوټیږی چی د بشر تنده ماتوی ·

(ط) «ګوټه»

لعل محمد «غریب»

# خپل حبیب

خدای[ج]نصیب می کړی وصال دخپل حبیب
ماسیراب کـــړی پـه جمال دخپل حبیب
په حـــرمت دامامانـو شهیدانو
راخرکند کړی خط وخال دخپل حبیب
که هرڅولیری جدایم له حبیبه
ماواصل کړی په اقبال دخپل حبیب
دغه زمادزده زړه خازه گلونه
ټول تازه کړی په شمال دخپل حبیب
دغه زمادتن تاریک مثال یـوځله
منور کـړی پـه مثال دخپل حبیب
که هرڅویم زه بی حاله بی احواله
حال می حال کړی په حوال دخپل حبیب
په دنیا کښی دهرشی مثالها واید
ماونـــه لیدی مثال دخپل حبیب
بل خیال نلرم په زړه کښی ای خاونده!
په خاطر کښی می دی خیال دخپل حبیب
زه(غریب) که یاهرڅو مره بی کمال یم
ماکامل کړی په کمال دخپل حبیب

---

پیر محمد[کاکړ]

# زړونه زانگی

چی پرمخ دی کړه خواره دزلفو ولونه
زړونه زانگی په هرتار لکه ټلونه
تورمژګان دی پرما حکم کړی دقتل
توروستر ګو دی را پوری کړه تورونه
دواړه شونډی ئی سکروټی دی ئمنا کی
پـرڅیری صبح شام کـوټلی زړونه
څه عجیب ملال کاتـه دی د ترکانو
چی تاراج ئی کړه زما دخاطر خونه
ماوی تاتـه بـه ړدسق هغه تـه ژاړم
تامی کښېښو پـر سینه تازه داغونه

بې وصاله مې دوامه کــړه طبيبه !
روغ به کله شم دهجــز له طاعونه
ځای اری که فلک توی لکه شبنم شي
چې په شپه مې ورته ځي ساړه آهونه
سم قامت وتــــه دې سروه نه رسيږي
مجنون بيدسو ستا له غمه سر نګونه
پر دنيا به ځه بادي «پيرمحمد» کاندي
په ارمان چې ځني ليرې دې زلمي نجونه

---

ښاغلي علي احمد [سلطاني]

# نيم بسمل کله

که زما پسر لوري کيږدې قدمونه
نو آسان به شي زما دشوار کارونو
چې هرځه راسره کاندې خوښه ستاده
که هرځه کړې پرما ندې ستمونه
شپه دهجر دې اوږده تر مياشتو کال شوه
نيم بسمل کله کولای شي خوبونه
که دې يوار په ديدن موړه کړم صنمه
سرو مال مې ستا دحسن دې نذرونه
وسوال وته مې غوږونه نيسې هيڅ کله
په يوه جواب وايې دزرو جوابونه
الهي زما ددلبر زړه خو دسنګ دی
چې پروا نکــــړي زما په فريا دونو
په ليکلو به مې غم هيڅ تمام نشي
که تصنيف لي کړم له غمه کتابونه
[سلطاني] بې ګواهي عاشقي نکړم
سبائي دعشق پرخوا وهي تاختونه

---

ښاغلي «باور»

## ددښمن کوربه دې
ړنګ کړم

په درګاه کښې به دې ځان در ته ملنګ کم — ځانه به خلاص د هري خوا دنام ننګ کم
که حجاب دې دخپل مخه ځني دور کړي — په طواف به دې ځان جوړ لکه پتنګ کم
ستا ديدن ځما د پاره ډېر ثــواب دی — مخامخ شه چې دې ليرې دزړه زنګ کم
که دفتر د محبت کې مې نوم ثبت کـــړي — په شمشير به دې رقيب په وينو رنګ کم
که دې ځان دمحبت په سند لاهـــو کې — زه به هم درپسې خپل ځان جوړ نهنګ کم
په خندا کـه دې «باور» ته نظر وکړ
په دې پوه شه ددښمن کور به دې ړنګ کم

محمد حسین [ریدی] — آزاد شعر

# تخیل

د سپین پرغاړه    لاس مې تر غاړه
چې راسره وای اشنای مې ګل وای
تیاره خپره وي    ستوري راخېژي
افسوس چې دی وای شراب و مل وای
چو په چوپتیا ده    د خیال دنیا ده
چارا ته وي د شپې د غزو غیاړه سنبل وای

سپوږمۍ خندا کې    پېغلې نڅا کې
زلمیان په مینه د جام مست مدام تل وای
د ښنګېږ و شرنګ دی    آواز د جنګ دی
څڼې به یې خورې کړې ای زلفې کاکل وای
با نو یې غشي    سترګې ئې برندې

کاشکې مجروح شم یا یې بسمل وای
د ناز کاته دي    د زړه خواله دي
زړه مجدې کړای ورته ژړل وای
زه مست له دې وای    دي مست په مېو
د واړه خوبرای حالت مو بل وای

چې شپه پخه شي    مینه تسوده شي
پر سپین بازو خو ئې ایله اوربل وای
زه چې غمجن یم    په زړه خوږمن یم
پردیس شها ته خدایه واصل وای
خوانې شوه تیره    آرزوی خاوری
کامیاب په مینه د ها پښتو [ریدی] بو غل وای

---

## د غروب

سپینو د لکو غرو و نوشاته
زېړی لمر ورو ورو پټېږی
څه ماهیر او مړه بادونه
بیا مې زړه کې ژړ اندې کېږي

●●●●

مازیګر وږمه چلېږي
ربوی وحشي ګلونه
په درو کې انګازه کړي
د زړو شپنیو غږونه

●●●●

د کیږدۍ ډېر مني پیالې
سیرلکي په شنو ونوکی
یومکی ماشوم ویده دی
کیږدۍ لاندې په ژړا انګو کې

د ښېترو ګن ځنګله کښې
ګړونی سندرې وائی
صحرائی ښائسته پېغله
یو جونګې او بوته بیائې

●●●●

د ښېترو څانګو باندې
ځنګلي مرغان چغېږي
د تور تم رانګ نژدې دی
ګونګدي دوي وره وادېږي

●●●●

د شفق ورو ستي ورانګي دي
مچوی او چت ښا خوته
زه لاهسې په ت کې اغت يم
زوروی مې تیز بادونه
[محمود فارابی]



خواجه محمد[ بنګښ]

# زړه مې ستا په محبت سره تړلی

چې پادشائی دجمله ونباتسته ؤ
خبروا خلهٔ دعا جزخوار وخسته ؤ
زړونه مه ماتوه لعل دبدخشان دی
بیا مشکل دی رغول دشکسته ؤ
زړه مې ستا په محبت سره تړلی
نظر وکړه په داخپلو دل بسته ؤ
دچمن ګلونه واړه پری تازه شوه
شمال راغی ستا دمخ له ګل دسته ؤ
درست لی ویستم له عقله له شعره
ستا خوږو خوږو خبرو آهسته ؤ
چې نی قدقامت ستا په سترګو ولید
ملا شوه ټیټه دهمه و آراسته ؤ
څما سر به تر دوهم آسمانه تیر شی
که مې کړی دخپل مجلس له نشسته ؤ
یاره ستا په څیر نیکټ خوپه سړی نسته
مګر تازده کړه داخوی له فرشته ؤ
سروماله په همکی څخنی قربان کړم
زه[خواجه محمد]مریددنبالسته ؤ




سکندر چه تر ټبورابع مسکون وکیښ
څه ارمان لی په نابوده ژوندون وکیښ
بنه نوم وګټی که نه غواړی چی مړشی
ارسطو ئی په مزار دامضون وکیښ
«رشاد»

داغزی په څیر دګل سره همرازسه
په زیره صورت دګلوساتل زده که
نسترن سه په آغوش سرو آزادکړه
ترهر بوټی دګلشن تاویدل زده که
[مرحوم سیدحسن]

ښاغلی سربن — منثور شعر

# د وطن صالح زوی

ګرانه وطنه !

ستا د پراخې فضا په مکتب کښې چې د قدرت معلم ما ته د مرګ یا آزادۍ درس راکړی دی زه هغه هېروم، یا ګاهې ئې نه هېروم، د سر په ښندنه او د وینو په تویولو به د هغه معلم د نصیحت حق ادا شي که یا؟ ستا په رڼو اوبو او خوندورو نعمتو چې زما بدن پرورش پیدا کړی دی آیا هغه په عوض کښې به ته زما زخمي زړه او ټوکړ ټوکړ بدن قبول کړې؟

زه خو غیر له ایثار او فداکارۍ څخه بله هدیه نه لرم ته دا هدیه ومنه او ما ممنون کړه. زه خپل کړه پر هیڅ نه بولم خو ته ئې څه وبوله خپل حق رابل او د عدم په غېږ کښې زما روح مستریح او آرام که .

زما روح چې د فداکارۍ میدان ته د آزادۍ ګټلو په غرض په ډېره خوښۍ سره حاضرېږي

نو د استاد پاکې غېږې د روزلو اثر دی نو ای زما روزونکې مورې زه د یوه صالح زوی په څېر ستا حق اداکوم ته خپل صالح زوی له یاده مه باسه او دا ناچیزه خدمت ئې د خپلو نیکیو په بدله کښې مجرا که چې روح ئې ښاد شي .

---

د ن، م [سوا] لیکنه :

# متضاد ژوند

ځینې مادي پرستان دي
هغه نور بیا معنوي سرمایه غواړي
یو د دنیا په منجلاب کې ډوب دي
او هغه بل د آخرت ښاد ژوند ته هیله من
څوک د هر کار ظاهر ته ګوري او ځینې بیا د هغو باطن ته
څوک حق پټوي او ځینې بیا د هغو اظهار کوي
ځینې بیا په رشوت، غلا او قمار اخته دي
هغه نور بیا د هغو سره مجادله کوي

ځینې د عدل آرزومند دي او ځینې د چپاول
څوک د اولاد د نشوالي څخه ژاړي، هغه نور بیا د ناصالح اولاد څخه سر ټکوي
ځینې په دنائت، حیلې او تملق ژوند کوي
هغه نور بیا په شرافت، پوهې او میړانه
څوک خبرو ته په عبارا تو رنګ ورکوي او څوک په معنی
خو بای ئې دا چې ټول لا لهانده دي
هر یو په کار اخته دي

هر څوک خپل عمل ته ښه
وائي
بیله دې چې پوه شي
ښه کوم دی او بد کوم دی
ټول له یو پر بل تهمت وائي
دی د هغه عمل غندي او هغه
د ده

د جهل په توره تیاره کې
نور او سپین څه معلومیږي
د خطا او ثواب، پوه او
ناپوه، حق او باطل تمیز
څوک کوي؟

څوک د ماضي کلونو د
حساب په تصفیې بوخت دي
او ځینې بیا د نن حساب
ماضي ته سپاري

# دلویانو خبری

تاریخ :

تاریخ د پاچهانو مشاوردی .

(دموستنس)

څرنګه چی دزمانی ژر تېر بدل ځوك نه شی را ګرزولای دغه رنګه تاریخ هم ځوك نشی خطا ایستلای.

(....)

لویان او متفکرین هغه خلك دی چی تاریخ دوی په وجود راوړی ځکه تاریخ د پاچهانو، فیلسوفانو پیشوایانو کاروائی ده .

(اسمایلز)

دیوولس تاریخ هغه بڼ دی چی د هغه اولس مېړونه او لویان ئی ګلان دی .

(ګوستاولو بون

تیره شوی زمانه لکه څراغ داسی ده چی دراتلونکی زمانی پر تاریکو باندی رڼا اچوی .

(ګوستاولو بون)

د تاریخ سیر دلویانو دژوند پر جریان بنادی .

(کارلایل)

تیره زمانه داسی شی ده چی هرڅه موږ څنی لیری کیږو هغومره ښایسته معلو میږی .

(فتحی الرملی )

په تاریخی او اجتماعی کتنو کی ترهرڅه دمخه باید اکثریت ته اعتبار ورکړه شی .

(ګوستارولو بون)

زموږ اوسنی اوضاع د پخوانیو څخه پیدا شوی او راتلونکی اوضاع به څنی وزیږی .

(....)

د نظام الدین (پرکی وال) څېړنه

# ابن عساکر

دابن عساکر اصلی نوم علی او دحسن بن هبة الله بن حسن بن عبدالله حسین بن عساکر د مشقی زوی دی . چی

کنیه ئې ابی القاسم یا ابو الحسن او لقب ئې نورالدین وثقة الدین او مشهور په ابن عساکرو .

دی دهجری شپږمی پیړی د نومیالیو مؤرخینو، فقهاؤ حفاظو او شافعی محدثینو څخه ؤ دلومړی د مقدماتی علمو نودزده کړی په کار پیل وکړی، او وروسته تر هغی

ئې دعلمی مراتبو دبشپړولو دپاره عراق او دخراسان ځینو ځایو ته سفروکړ او په اصفهان او خراسان کی ئې دا حادیثو په تعلیم او خپرولو شروع وکړه .

ده دځینو مأخذو په حواله د (۸۰) ښځو او (۱۴۰۰) نارینه ؤ څخه احادیث اورېدلی او ګرده عمر ئې په تالیفاتو او تعلیم مصرف کړیدی .

نور الدین ملك عادل محمود بن زنګی د (دار الحدیث النوریه) په نامه هغه نه مدرسه جوړه کړه او دعمر ترپایه ئې هلته د احادیثو تدریس کاوه .

ابن عساکر دد نیا کارونو د ثروت خاوندانو، او بډایانو ته توجه نه درلوده او په پوره قناعت سره ئې ژوند کاوه .

دد مشق تاریخ چی (۸۰) مجلده ؤ او په تاریخ کبیر مشهوردی ده د تالیفاتو څخه دی چی دډیرو مؤرخینو د توجه وړ ده .

وائی دی ځینی نور دینی تألیفات هم لری او د شعر په ویلو کی ئی هم لاس درلود.

دی په (۵۷۱) یا (۵۷۳) هجری کال کښی په دمشق کی

وفات شو او د باب الصغیر په مقبری کښی د خپلو او خپلوانو او معاویه (رض) څنګ ته ښخ کړل شو .

شیخ قطب الداین نیشا پوری پر هغه د جنازی لمونځ وکړ او ملك ناصر صلاح الدین

یوسف بن ایوب هم د هغه د جنازی په لمونځ کی حاضرؤ .

ښاغلی حبیب الله (تږی)

# ارامی لیک او ارامیان

د ادی بدی ګڼه کښی به ارامی لیک د ارامیانو خبری کو واو
دا ځکه چی یو خو فنیقی لیک وروسته دده لیک
له بدلیدلو نه په ارامی لیک سره د نړی په بیلو
بیلو برخو کښی زښت ډیر خپور شو او بله دا چی
د افغانستان لومړنی لیک هم همدغه ارامی
لیک دی چی د هند او ایران د لارو نه په بیلو بیلو
بڼو ورته راننوتلی او بیا په تیریدو د مهال د
افغانستان په ډیر ارغونی او اصلی یعنی
خروشتی لیک بدل شوی دی

دارامی لیک په برخه کښی زه د خپل
تحقیقی اصول سره سم لومړی پخپله ارامیانو
پوغیږم او بیا دی ته راځم چی ارامی لیک کوم
لیک و، ځکه ګومان کوم تر څو چی سړی لومړی
تر یو حده پوری پخپله د ارامیانو او د دوی د
ژوندانه د زمان او مکان سره آشنا نه شی تر هغو
پوری د نوموړی قوم د لیک په برخه کښی خبری
کول څه پخی شانته نه بریښی ۰

ارامیان دارام-د شمالی سامیانو د قلمرو
او یا د هغه مملکت اوسیدونکی دی چی د بابل
له لویدیځو سرحدونو نه د لویدیځی اسیا تر لویه
ځمکو پوری رسیده او مرکزی ښاری ی د «الیپو»
شمال ته زنجرلی وچی ډیری زیاتی زړې کتیبې
پکښی پیدا شوی دی ۰[۱]

د اقوم د اشور په زړو کتیبو کښی چی نیټه ئی
۱۴۲۰ پخوا له میلاد ته رسی دا خلاصه او په را
وروسته اثارو کښی د (ارامه) په نامه یاد شوی دی
[۲] د (عاد رام) لفظ هم چی په قران شریف
کښی راغلی دی ښایی برغه یی همدغه ارامیان
وی [۳]

دوی د مذهب ژبی او توکم له مخی د شمالی
سامیانو یو ښاخ بلل کیږی [۴] او ځینی محققین
یی لا د اسرائیلیانو ډیر نږدی خپلوان ګڼی او
وایی ارامیان د سوریی د سامی نژاده کوچیانو
یو قوم دی چی د فلسطین په جنوب کښی د کوډیر
خواته او دغه شپانه کوچیان چی دښت په دښت
به د خپلو کیږدیو سره ګرځیدل، د اسرائیلیانو
ډیر نږدی خپلوان وه مګر ځینی خلکو په غلط
سره کلدانیان هم بللی دی ۰ او ارامیانو له
څورلسمی پیړۍ نه راپدی خوا خپلو ګاونډیو
متمدنو ملکو ته مخه کړه چور او چپاو یی پری
جوړ کړ ۰ [۵]

د (دجله) د غاړی نه بین النهرین ته ورننوتل
په بابل کی کلدانیان چی لا هم د شمال خواته
په یانه کښی وه، ور سره مخامخ شول د (سوتی)
برګی هم چی له دوی سره د توکم له مخی ډیر
نژدی وه او د دغی سیمی ډیره زیاته برخه یی د
مخه لا نیولی وه، د دوی مخ نیوی ته یی بیړې

---

[۱] دائرة المعارف بریتانیکا «د» ARAMEAN تر کلمی لاندی [۲] برهان قاطع مخ ۲۰،
[۳] سبک شفسی ټوک مخ ۱۸۰، [۴] دائرة المعارف د ارامین تر کلمی لاندی [۵] برهان قاطع ټوک ۱ مخ ۲۰۰

وهلی. خو بیا هم وروسته له دې نوموړی قوم اهمیت پیدا کړ او د آثارو خاوند شو. ✿[۱]

د لومړی شلمانسر د اشور پاچا په ۱۲۸۰ کښې د اراميا نو سره په جګړه کښې ؤ. [۲] د اشور هیواد یې هم ونیو او وایې همدغه یرغل ؤ چې د اشور لرغونی دولت ته یې خاتمه ورکړه. [۳]

په هره خوا به چې د نوموړی قوم مخه شوه ز ګران به یې پخپل فرمان کړل. سوداګری به یې ترلاسه کړه په کاروانی لارو به ئې تسلط و موند او کومې ځمکې چې به یې ونیولی هلته به یې له خپل خوا شهریاران مقرر کړل [۴] په ۱۲۰۰ ق.م کښې یې د مشق، حلب او د سوریې نور وا ړه ملکونه خپل کړل او ښه قوی سوداګری یې شروع کړه [۵] په سوداګری کښې هم پوره غښتلی شول او دوی وروسته له فنیقیا نو نه یوا ځنی سامی قوم ؤ چې د خپلې سوداګری نفوذ ئې هر خوا ته خپور کړ په نینوا د اشور په پایتخت او بابل کښې یې سوداګری رونق لاره. او د سیاست نفوذ یې د سوداګری سره ځنګ په ځنګ په مخ تله. [۶]

ارامی ژبه چې په دوو لهجو ویشل شوې ده یعنی یوه عراقی لهجه چې د شرقی ارامی په نامه یادیږی او بله د سوریې فلسطین او طور سینا لهجه چې د غربی ارامی په نامه یادیږی. [۷] په نهمه ق م پیړۍ کښې په اشور کښې د ټول ولس ژبه وه پوازې په بابل کښې بومی ژبه د دربار یا نو او دینی مشرانو سره پاتې شوه پخپله فلسطین کښې هم چې د عری ژبې مرکز، په ۷۰۵ ق، م کښې ارامی ژبه سیاسی ژبه وه [۸] مګر د عربو د یرغل سره سم عربی ژبه چې د ټولو سامی ژبو سره اړیکی لری په اسانی سره د سامی قومونو په ځمکو کښې رواج شوه او ارامی ژبه یې له منځه یووړه [۹]

اراميا نو په ۱۰۰۰ ق، م کښې هغه الفبا چې یې د فنیقیا نو څخه اخیستې وه پخپلو لیکنو کښې په کار واچوله، دې الفبا چې وروسته د ارامی لیک په نامه یاده شوه د نږدې او منځنی ختیځ له یوه نه تر بل سره پورې اغیزه وکړه او په ورو ورو یې میخی لیک رټ له منځه یووړ. [۱۰] داسې چې لومړی به هر چیری په میخی لیک څه لیکل کیدل، د لیک د خاوندانو یا که دغه شی کوم خاورین لوحی یا کوم بل شی ؤ د

---

✿ تاریخ اللغات السامه یدی برخه کښې لیکی چې اراميان دری زره کاله پخوا له میلاده د کوم نا معلوم ځایه څخه په جزیرة العرب کښې په وحشي ډول د فرات جنوبی سیمو ته ورننو تلی دی او نږدې پنځلس پیړۍ یې په هغو سیمو کښې په یرغلګری، وژلو او تالا کولو د بابل او پشور پاچا یو کښې تیری کړی دی مګر د بابل او آشور ټینګار په واسطه د پنځلسمی پیړۍ په شاوخوا کښې د سوریې خوا ته شړل شوی دی او په سوریه کښې یې د دولسمې پیړۍ په شاوخوا کښې په یرغلګری ګوتې پورې کړی دی او په عراق، سوریه او فلسطین کې یې اړودوړ جوړ کړی دی تر څو په پای کښې د سوریې په شمال کښې د کوچنیو کوچنیو دولتونو په جوړولو بریالی شول حد اسرائیلو سره ئې په دښمنۍ او احوډ ب پیل وکړ د داؤد د پادشاهۍ په وخت کښې د ۱۰۰۰ ق.م په شاوخوا کښې د سوریې په ځمکه کښې د خو کوچنیو کوچنیو ارامی دولتونو نه خبر یو چې د فلسطین تر شاوخوا لکه (ارام دمشق) او (ارام صوبا) د (حوران) په ځمکه کښې او (ارام بیت رحوب) او داسې نور (سبك شناسی ج اص (۷۰) ح۱) (۱) تاریخ ایران مخ ۱۰۸ (۲) برهان قاطع مخ ۴۰. (۳) تاریخ ایران (۴) برهان قاطع مخ، ۴۰. (۵) تاریخ ایران (٦) فرهنګ ایران باستان (۷) سبك شناسی ټوك مخ ۱۰ (۸۱ (۸) فرهنګ ایران باستان مخ ۱۵۳ (۹) فرهنګ ایران باستان مخ ۱۵۳ (۱۰) تاریخ ایران مخ ۱۰۸-۱۰۹.

پلورنکي یا پېرودونکي نوم به يې په کومه ځنډه باندې په ارامي لیك لیکل کېده، مګر وروسته د دې لیك لیکل دومره زیات شو چې د مصر، کوچنۍ اسیا، عراق او ایران په ټول قلمرو کښې يې عمومیت وموند او د حکامو او

پاچایانو مکاتیب او د ملتو نورو اړطاو دولتي ورځپاڼې او فرمانونه او عادي لیکنې واړه په ارامي لیك لیکل کېدلې (۱)

ارامي لیکوونکي چې فنیقي الفبايي زده کړې وه په لومړي سر کښې يې خپلې لیکنې

په فنیقي ژبه ولیکلې، سره له دې چې يې دغه ژبه نه وه زده، خو ځرنګه چې دغه دوه لهجې یوه د بلې سره نژدې وې، نو يې حاجت پوره کړه، وروسته يې همدغه فنیقي الفبا ځنګه چې وه، د خپلې مورنۍ لهجې، ارامي د پاره په کار واچوله

له دې امله ارامي ژبې چې يې زده کړه د سامي ژبانو خلکو د پاره څه ګرانه وه، په ارامي لیك چې ساده الفبا وه، د سامي اقوامو واړه هیوادونه ونیول او له بحرالروم نه تر زاګروس او د پارس

ترخلیجه پورې یې د املې ژبه ګڼل کېدله. [۲]

په مصر کښې هم بومي ژبه یوزي په معمولي خط و کښې په هیروګلیف لیك چې هغه وخت ساده شوی و، لیکل کېدله او په دولتي دیوانونو کښې او رسمي اسنادو او داسې نورو کښې

ارامي لیك په کار لوېده [۳]

د ځینو قرائنو نه ځرګندېږي چې میخي لیك دور ځنیو حوائجو د پاره په کار لوېده او دغه لیك د کیډلو د پاره اختصاص لاره، اما ارامي الفبا چې [۲۲] توري يې لرل د لیکلو د پاره اسانه وه [۴]

د ارامي لیك په برخه کښې هم چې له کوم ښاخه دی، ټول ټول خبرې شوې دي، ځینو دا انګیرلې ده چې لومړنی لیك د مصر د هیروګلیف لیك ځخه راوتلی دی، ځینې وایي چې د سامي ملتونو

ځخه یو ملت دغه لیك جوړ کړی دی. ځینې بیا لا هم وایي چې فنیقي لیك هم له دې ځخه راوتلی دی ځکه وایي ارامي لیك له دوه زرو کلونو نه راپدې خوا موجود و. [۵]

مګر ځرنګه چې د نړۍ د الفبايي لیکونو د منشا تر عنوان لاندې وویل: د الیك د فنیقي لیك ځخه راوتلی دی

ارامي ستر آثار:

د تورات دوه برخې په ارامي ژبه دي د دانیال د کتاب یوه برخه چې د انتیوخس اپیفانوس (۱۶۴-۱۷۵ ق.م) په وخت کښې لیکل شوي او

د دانیال ته يې نسبت ور کړل شوی دی د عزرا د کتاب برخه چې د ق.م د درېمې پېړۍ په شاوخوا کښې لیکل شوې دی، دغه ټول ترګوم (ترجوم-ترجمه) تفسیر چې په تورات لیکل شوی دی او د دوهمې ق.م پېړۍ نه شروع شوی دی، په ارامي ژبه دی.

دغه ټول تلمود (زده کړه) په همدې ژبه دی. چې یوه برخه يې د څلورمې میلادي پېړۍ په شاوخوا کښې په فلسطین کښې سره راټوله کړې ده او په غربي ارامي لهجه ده.

او بله برخه يې د (۳۶۷ او ۴۲۷) میلادي کال په شاوخوا کښې په بابل کښې راټوله شوې او تر پنځمې پېړۍ پورې مطلب پرې ور زیات شوی دی او د بابلي تلمود په نامه یادېږي او په شرقي ارامي ژبه دی. [۶]

[۱] سبك شناسي ټوك اول مخ ۷۱ [۲] برهان قاطع مخ ۳۰-۳۱ [۳] فرهنګ ایران باستان مخ ۱۵۳.
[۴] برهان قاطع مخ ۳۱ [۵] سبك شناسي مخ ۷۱ [۶] برهان قاطع پهلوی کتیبې. هیننګ، مخ ۱۱-۱۵ کابل

د عبد الصمد «نصر خوا» ژباړه «۳»

# ارسطو او د هغه فلسفي معضلې

چې هغه هم عبارت د روح یا لومړی آنتلکیا څخه دی د آنتلیکیا د کلمې لپاره یوه معنه معنی نه وه پیدا شوی حتی (سیسران) چې له فلاسفه ؤ څخه دی هم ئې د دغه لغت لپاره معنی

نه ده پیدا کړی لکه چې لیکلی دی: فکر کول، حس او ادراک کول د داسی شیانو په برخه کښې چې هغه لا واقع شوی نوی او په مثل د دغو نوری خاطری دی چې د ارسطو په

رابعه صنفو کښې داخل نه دی خو ارسطو په پنځم صنف کې چې کوم نوم ور ته ټاکل شوی نه دی صرف روح د یوه داسی حرکت په طرز تلقي کوی او بیا هغه ته یو نوی نوم چې

آنتلکیا نومېږی ور کوی، په هر حال چې ئې لیدل شوی لیکل شوی او اورېدل شوی دی چې ارسطو ما دی سلک ته چې پر مائله ؤ که څه هم د نوموړی استاد دغه تمائل

د ده د فلسفي په اساس له شبهې نه خالی دی خو بیا هم د غه استاد د روح یو الی او نه بیلېدو نکی شی مدلله کړی

دی او د روح د مسلې په برخه کښې وائي:

دا ښکاره خبره ده چې روح د لومړی یو والی درلو نکی دی ځکه چې پخپل عمل سره ټو له خپل موجودیت وقف کوی او بیا د اضطراب په خت کښې خپل ټو له موجودیت مضطرب کوی نو طبعی ده چې

پخپله موجود د یو الی په حال کې د امتداد او ویش څخه خالی دی.

ارسطو روح ته درې مهمې خاصې تصور کوی لکه غذا، حس او ذکاء.

لومړی خاصه په ټولو مصغیه موجوداتو کښې شته او دوهم ئې په ټولو حیوا نا تو کښې پیدا کېږی خو دریم ئې یوازی د انسان لپاره ده ارسطو خپله هغه مفکوره چې د عقل په نامه ئې بولی پر دوو برخو

ویشی فاعل عقل او منفصل عقل د استاد په نظر منفصله عاقله د یوی املس لوحی په شان ده چې د فاعلی عاقلې په واسطه ورو ورو خپل ماهیت ښکاره کوی او بالاخره

د انسان سره د نیا ته راځی او له انسان سره د د نیا ځی څخه مګر فاعله عاقله عمومی او آبدی ده.

فزیک د ارسطو په نظر کې:

................................................

ارسطو عادت درلودی چې

په هر شی کښې ګلهشی او تر څېړنی لاندی راولی لومړی ئې مده اظر یی چی به په دغه زمینه کښې له پخوا څخه موجودی وی یوه یوه ردول او په عوض کښې به ئې نوی بناوی چې

د ده دماغی ابتکارات وه منځته راوړل همدغه وجه ده چې (باسیکن) انګلیسی فیلسوف د ارسطو په برخه کښې داسی وایی:

په ارسطو کښې هم د عثمانی شاهانو طرز موجود ؤ ځکه ده ګمان کاوه چې د هغوی حکمرانی یوازی د نورو وروڼو په وژلو کښې ده خو ځرنګه چې پوهیږو دغه

مفکوره د سقراط څخه پخوا هم موجوده وه ارسطو د هیئت د علم په زمینه کښې هم څه پرمخ تللی دی او د (فیثاغورث) د دغې نظریې سره چې وایی لمر د نظام عالم

مرکز دی موافقه نلری او مځکې ته ترجیح ور کوی د ده کوچنی کتاب چې د ستورو پوری په نامه دی پسله یوی سلسلې روښانه تجربو وائي ځمکه یوه دائره ده او لمر

بېله توقفه بحرونه تبخيره وي او چشمې له منځه وړي او په نتيجه کښې لوی وچ ميدانونه منځته راځي خو بالعکس هغه بخارونه چې هوا ته صعود کوي دا وريځې شکل

پيدا کوي او دا وربش په توګه بېرته مځکې ته رالوېږي په دې توګه او به بيا ژوندی او منابع ئې پيدا کېږي نيل په مصر کښې دی د نيل او به وخپلو اطرافو ته تجاوز کوي

او اطراف ئې هم وروورو بحر ته نژدې کېږي بدې توګه نوی وچ ځايونه منځ ته راځي او نوی خشکې پيدا کېږي او برعکس ځنې قديمه ځايونه له منځه ځي بدې توګه ټوله

نړۍ يوه لوی حرکت په ما بين کې نشئو نما او بيا په يوه انحلال سره تبدل کوي او دغه تبدلات په وارو وارو پېښېږي خو په ځينو وختو کې دغه تبدلات په لويه پيمانه

صورت مومي ژوند او مادی مدنيت چې په ژونو لوژی اړه لري خرابه وي ئې او ئې پر ځله لوی لوی فلاکتو ځمکه داسې لخه کړی ده چې انسانان ئې

و نومړ نيودوروته راجع کړی دی په واروارو او په مکررو تجربو سره مدنيت خپل اوج ته رسيدلی او بيا بېرته په وحشت کښې لوېدلی دی بيا

پورته او بيا لوېدلی دی همدا وجه ده چې انسان له يوه حاله وبل حال ته اوړی او ځرنګه چې انسانان په داسې توګه په يوه مشئومه تاريخي دائره کښې ژوند او حرکت کوي نو ځکه ئې پرهغه

مځکه چې دوی ئې پخپل غيږ کښې لری سلطه او اقتدار ټينګ کړی نه دی.

دارسطو د ما بعد الطبيعيه مبادې

---

دارسطو په آثارو کښې د ځينو داسې آثار او ليکنو سره مخامخ کېږو چې د طبيعيه علوموپر برخه کښې تأليف شويدی دغه کتابونه

ارسطو (ما بعد الطبيعيه) بللی دی او د (متافزيک) کلمه له همدغه وجه منځته راغلې ده.

ارسطو پخپلو دغو آثارو کې ځنې عمومي مسئلې داسې تر ځېړنې لاندې نيولې دی چې د هغو په

احوال او کيفيت اړه نه لري بلکه دا مسئلې مطلق د هغو په ذات او وجود اړه پيدا کوي.

ارسطو حکمت ته د علم اسباب يا د علم مبادی وائي ځينو فلاسفه ؤ

چې د (مبادی او لهي په برخه کښې مطالعې کړيدی ارسطو وروسته بيا د کونيه ؤ لکه وجود، وحدت، طبيعت، قدرت کمال او نورو

شيانو د شا او خوا په بوژلند نه کښې بحث کړی او لومړی وجود ئې د [الله] ترمفهومه رسولی دی او بيا ئې خو داسې مسئلې چې د دغه مفاهيمو

سره مناسبت لری منځته راوړی او هری مسئلې ته ئې بېل بېل جواب ورکړيدی ارسطو عقيده لری چې نړۍ آبدی ده دا پخپل ذات کښې متحرکه نده بلکه يو محرک

ته اړه لری چې هغه لومړی محرک دی دا ازلی او آبدی محرک چې متحرک نه دی يوازی طبيعي علت هم نه دی بلکه د خپل ذات په حد کښې ذکاء ده چې حائز د لوړ سعادت دی.

## ارسطو او سياست :

---

دارسطو د آثارو په سلسله کښې د سياست په نامه هم کتابسته چې هغه موږ د سياست په برخه کې لومړنی لوی علمي او فلسفي آثر ګڼو

او د دغه فيلسوف ځنې اساسي ټکي چې د سياست او د دولت د اداري په حصه يې ښکاره کړيدی دده د سياست د کتاب څخه په لنډه ول د لته راوړ.

ارسطو دولت يوه طبيعي ګڼي او دده په نظريه د دولت اساس عائله کورنۍ ده او کورنۍ ټولنه منځته راوړی

چې په نتيجه کښې دولت جوړېږی او دولت د انسانی ټولونو د تکامل وروستنی مرحله ده.

[نوربها]

۲

لیکوونکـــی رهبر فاروقی

مترجم ښاغلی عبدالقدوس [ت]

# دالماسو اصلیت او ماهیت

لدی وجهی څخه په ملك کښی بدامنی او بی انتظامی پیداشوه مالونه چپاو او په زور وخلګ مړه شوه څوهغه وو چی دا الماس د ګوالیاد نوی راجا رای نرسنګ نومی ته پلاس ور غلی

داسی هم ویل کیږی چی په ۱۳۰۴ عیسوی سنه کی چی علاوالدین دملوی پر راجا باندی بری پیدا کی نو پدی وخت کښی ذکرشوی الماس ده ته د تحفی په ډول سره واړاندی شو.

بیا چی دوی دواړو په خپلو ما بینو کښی

صلح سره وکړه نو سلطان دغه الماس بیرته راجا ته ورکی او د بابر تر یرغله پوری دده د کورنی په لاس کښی ؤ.

## دبابر الماس

راجاسکر ماجیت چی داری نرسنګه د کورنی جانشینه ؤ په ۱۵۲۵ ع کال ته راغلی تر راتګ د مخه ئی خپل ټوله مالونه او نقدی دولت سره له جواهراتو او زرودساتنی په نیت داګری کلا ته واستوله ځکه چی له یوی خوا څخه هغه ځای محفوظ ځای ؤ او له بلی خوا

څخه ئی ساتنه دده پر ذمه شوی وه دخدای کړه وه هغه ؤ چی پسله ز دوخورده څخه لودی ابراهیم د بابر له لاسه ماته وکړه بابر چی د اګری د کلا په اهمیت او په ډیرو خزانو پخوالا خبر ؤ ځکه تر هرڅه د مخه ئی خپل زوی همایون

نومی د نوموړی کلا د نیولو په غرض هغی خواته واستاوه..

د بکر ماجیت متعلقینو چی په ځانو کښی د خیګ کولو سیګ وته لیدی نو دعجزوالی له

مخی ئی د کوه نور الماس د تحفی په ډول سره همایون ته وړاندی کړی.

چنانچه بابر په خپل تزک کښی د نوموړی جواهر د پلاس ر اوړلو ذکر پلاندی ډول سره کړیدی «روز جمعه بست و دوم رجب درمحلات اګره در منزل سلیمان فرملی فرود آمده شد

چون این منزل خیلی دور بو دصباح آن کوچ کرده در عمارت جلال خان نګرات فرود آمده شد همایون که پیشتر آمده بود مردم درآن قلعه عذر کرده حیل کردن این ها ازمسیر مردم ملاحظه کرده تجبرا نه دست انداز نشود ګفته تا آمدن ما رابر آمدرا احتیاط کرده

نشسته بودند بکرماجیت هندو که راجه ګوالیار بود ازصدسال بیشتر که درولایت ګوالیار پدر آن او سلطنت کرده بودند و بکرماجیت دروقت زیر کردن ابراهیم بدوزخ رفت اولاد وخیل خانه بکرماجیت در اګره بود دروقت آمدن همان خیلی بکرماجیت بخیال ګریختند

بودند مردمی که همایون ګذشته بود. ګرفته درمقام احتیاط می شوند همایون هم نمی ګذارند که تاراج بکنند برضای خود جواهر بسیار به همایون پیش کش میکنند (کردن) ازین جمله یکی الماس شهرتی بود که سلطان

علاؤالدین آورده بود آن چنان مشهور است که یک قوم قیمت او را به نصف خرج روزمره تمام عالم ګفته بود غالبا آهشت مثقال است دروقت آمدن من همایون بمن پیش کش کرد من باز به همایون بخشیدم».

په نوموړی تزک کښی دیوه مثقال وزن

څلوېښت رتي لیکل شوي دي په حساب سره نو اته مثقاله ۳۲۰ رتي کیږي او زموږ د دې وخت د رواجي وزن له مخې دغه الماس ۲۶ تولې اته رتي راځي د فرښتې د

تاریخ مؤلف لیکلي دي چې د دې الماس قیمت د ټولې نړۍ د یوې ورځې خوراک مهیا کولای شي او وزن ئې اته مثقاله یا ۲۲۴ رتي ؤ .

په هغه وخت کښې چې د ګوالیار راجه ګانو د خلجي سلطان علاؤالدین له خزانې څخه په چور یووړی د هغې د زمانې د مؤرخ په قول یو مثقال له ۲۸ رتي سره مساوي ؤ .

والدۀ سلطان ممنون عنایت گردیده یک قطعه الماس که هشت مثقال وزن داشت ومبصر آن جوهر شناس قیمت آن زیاده حد قیاس می گفتند از خزینه

سلطان علاؤالدین خلجي بود اورا از اولاد راجه بکر ماجیت بـــدست آمده پیش کش بابر نمود .

د سیرة المتأخرین مؤرخ چې لیکلي دي (الماس د لودي ابراهیم مور بابر ورکی د بابر د تزک له لیکنې سره چندانې سر نه خوري د دې مشهور کتاب د اصلاح په غرض څکه موږ پوره تنې

عبارت چې د کوه نور په متعلق ؤ دلته را نقل کی .

وایي یو وخت همایون سخت رنځور شو حال ئې دې اندازې ته رسیدلی ؤ چې بېخي له جوړېدو امید نه ور ته کیدی د دولت خیر غوښتونکي بابـر تـه دا مشهوره

ورکړه چې پاچا دې هغه شی پر ده باندې خیرات کي چې ډېر پر ګران وي موږ خو په خپل جانب د کوه نور تر الماس ذیقیمته شی په شاهي خزانه کښې نه وینو بابر د دوی په جواب کښې وویل هغه ګران

او ذیقیمته شی چې له ما څخه سته هغه زما روح دی د همایون د ژوند په مقابل کې داد نیوی دولت او حقیر مال (کوه نور) څه حقیقت او واقعیت نه لري زه به خپله خپل ځان تر ده فدا کوم په مجرد دې چې

دا یې وویل ولاړ شو او درې پلاټې پر بستر باندې چارچاپېر داو ګرځیدی دده د صحت او د ځان د ندرې کولو دعاوې د پاک خدای دربار ته وکړې .

روزی مرتضی علی کرم الله وجهه نگاه داشتند وآن روزی را که از چهارشنبه نگاه میدارند ایشان «بابر» از اضطراب و بی طاقتی از روز سه شنبه نگاه داشتند

هوا بغایت گرم بود دل وجگر ایشان تفیدو در روزۀ مذکور دعا خواستند که خدایا اگر به عوض جان جان مبدل شودمن که بابرم عمر وجان خودرا به همایون بخشیدم و درهمان روز حضرت

فردوس مکانی در تشویش (بیمار) شد قریب در سه ماه صاحب فراش بودند .

څني بد بینه او پېزړه تور خلک دا پر بخل باندې ده حملوی او وائي بابر دا الماس د کنجوسۍ له حیثه څخه پـر همایون بانـدې خیرات نکی د دې کسانو پر عقل او فهم باندې د فکر څښتنان باید وخاندي (او دوی ته ووایي چې د سړي

په نیز ځان تر هر اهمیت لري له مال. د تذکرة الواقعات جوهر آفتاب چې څخه دا ثابتیږي په هغه وخت کې چې همایون له سوري شیرشاه څخه ماته وکړه او فارس ته ولاړی هلته ئې خپل ټول جواهرات سره له یوه غټه الماسه شاتهماسب صفوي ته د تحفې په توګه ورکړه ګر نکه چې په نوموړي کتاب

کښې وزن ندی تصریح شوی نو نشو ویلای چې دا به دغه د کوه نور الماس وی که بل.

له اکبر او جهانګیر څخه د دې الماس د لرلو کومه

لیکنه زما تر نظر نده تیره. شوې شاجهان څکه چې د الماسو ډېر شوقي ؤ البته دغه الماس بې د خزانې زینت ګرزیدلی وای اما نو نه ویل کیږي چې د بند په وخت کې له شاجهان څخه ډېر قیمتي الماس ؤ . [نور بیا]

دفی عالم الرؤیا له عربی کتابه څخه
لیکوونکی جبران خلیل جبران

مترجم نجیب

# د بعلبک شاعر

(۱)

د بعلبک په ښار کښی (۱۱۲) کاله تر میلاد د مخه امیر پر مرصع تخت باندی چی پر چاپیر ئی ښکلی مشلونه لګیدل ناست ؤ وښی لور ته ئی کاهنانو کین لور ته ئی مخورو ومخ ته ئی مؤظفو

عسکرو منظم صفونه تړلی وه د خوندورو سندرو ویلو او ساز و سرود تر ږغو لو وروسته د وزیرانو مشر د امیر ومخ ته لاس پر نامه ودرېدی او داسی عرض ئی وکړ:

باداره! پرون د هند له حکماؤ څخه یو حکیم چی د پوهی او حکمت ښنی ئی له تندی څخه له ور اعلو میږی زموږ مملکت ته راغلی دی دی له یوه جسده څخه و بل

جسد ته د روح د تقمیص وعقیدی ته خلګ بولی - او غواړی چی د خپلی عقیدې د ثبوت اظهار په مختلفو دلایلو سره ستاسی و مبارک حضور ته هم عرض کړی.
امیر وفرمایل را حاضر ئی کړی چی دهند د دغی

عجیبی غریبی عقیدی په شاو خوا کښی «چی د مخه ئی هم لږ څه معلومات راڅخه شته» مفصل توضیحات را کړی پس له څو دقیقو

څخه یو تنګ تور پر ملا کړوپ سپین ږیری وصالون ته داخل شو او د احترام سرئی وامیر ته ټیټ کړ امیر پوښتنه څخنی وکړه.

حکیمه! څرنګه اروحونه له یوه بدن څخه و بل بدن ته منتقل کیږی او د تناسخ د سلسلی قیام پر کومو دلایلو باندی منبنی دی. حکیم په ډیر انکسار سره عرض وکړ قربان دی سم داروحونو

د انتقال مسئله یوه محققه او مثلی مسئله ده لکه څرنګه چی په بدن نوی جامه اغوستل کیږی او زړه د څخنی لیری کیږی همدغه شانته روح چی ابدیت لری او نه فانی کیږی د بدن زړه جامه پرټا کلی

وخت ایسته غورځوی او په عوض کښی نوی اغوندی مګر شقاوت او سعادت په عملو کښی د روح د جامی په نوی والی او زړوالی کښی لوی تأثیر لری:
کله چی وزیر د کلام داوږد

والی په سبب سره د امیر په تندی کښی د قلق او ضجر آثارو لیدل کراوئی حکیم ته په غوږ کښی پوس پوسی وویل (نن هومره توضیح بس ده نوره به بیا په بل فرصت کښی عرض کړی) حکیم د

وزیر په اشاره سر د سمدستی وخپلو وېناؤ ته خاتمه ورکړله او د کاهنانو په ټولی کښی مؤدب کښیناستی پاچا چی چار چاپیر سترګی ولغړولی درباری

شاعر ئی په سترګه نشو پوښتنه ئی وکړه آزما! شاعر چیری دی؟؟ داڅ پر عمر کیږی چی نه می دی لیدلی پخوا به هره شپه زما و مجلس ته حاضریدی هیڅکله به ئی ناغه کیدی.

له کاهنانو څخه یوه وویل یوه هفته د مخه د عشتروت د هیکل په رواق کښی ما ولیدی چی د لیری شفق ولورته یی داسی په حیر، حیر کتل چی تا به وویل داورېځو په ټوټو کی خپله قیصده پلټی.

[۱] مدینة بالشام مشهورة بآثارها الباقیة الی یومنا - المجد بعلبک په شام کښی د یوه مشهوره ښار نوم دی چی آثار یی تر اوسه پوری باقی دی.

بیا له قائدانو څخه یو قائد راد مخه شو او داسې عرض ئې وکړ: ګرانه ټولواکه ما پرون د سروی د ونو په منځ کښې ولاړ ولیدی چې

د شاعرانو افکارو په مینه کښې داسې لاهو ؤ چې زما وسلام ته ېېخي ملتفت نشو.

ددربار مشر رادمخه شو

او وېې ویل نن مې دقصر په باغچه کښې ولیدی ژړور - نوډې شوم ډنګر بدن، ژړ مخ، او له سترګو څخه ئې د اوښکو سیلاب بهیدلو په حیرت کښې واچولم او خورا متأثر شوم.

امیر چې ددوی داوینا وی په ډېر حیرت سره واورېدلې نو سمدستي ئې امر وکړ چې ژر ئې را حاضر کړی څه ور پېښه ده؟

عسکر او د حضور نور مؤظفین ددربار د مشر تر قیادت لاندې د هغه په مینډلو پسې ور ووتل په دربار کښې چپه چپا ئې

حکمفرما شوه ټول د بیوزلی شاعر د راوستلو په انتظار کې لاس تر زنې ناست وه.

پسله یوه ساعته څخه د دربار مشر ساشړونکی په

څفاسته وار خطا او طاق ته داخل شو چې تا به وئل هغه مرغه دی چې د صیاد غشي ژوبل کړی او د پناځای پلټي.

داحترام د رسم تر اجرا وروسته ئې داسې عرض وکړ: (د شاعر جسد مو د قصر په باغچه کښې مړ وموند ددې وینا په اورېدلو سره د امیر

په تکه ژېړه شوه او له ډېر تأثیر څخه ئې تندی ګنجې پیدا کړې وضعیت ئې پر بله خوا واوښت سمدستي بېله درنګه څخه د باغچې و لور ته له حاضرینو سره و پاڅیدی

کله چې دا نارو د درختو او حاطې ته نږدې شو هلته ئې د نامراده څلمي شاعر پر مړه جسد باندې سترګې ولګیدې چې د یوې ونې و بیخ ته د مړاوسوي ګلاب د ماتې

څانګې په څیر سره خوړ امانه غږ پدلی ؤ چې تا به ویل د شپو، شپو بدخوابه دی اوس دراّله خوب ورغی دی پدې وخت له مصاحبینو

څخه یوه ډېر تأثیر په حال کښې داسې وویل وګوری له سارتګې سره په مرګ لا څنګه غاړه په غاړه شوی دی لکه ښائیسته څلمی چې یوه ښکلې پېغله په بغل کې ټینګه نیولی وي.

بیا له قائدانو څخه یو راد مخه شو او د خپل تأثر اظهار ئې داسې وکړ:

اوس ئې لا د خیال په عالم کې لکه څنګه چې ئې عادت ؤ دستورو

وخواته سترګې برګې نیولې دي چې ته به وایې د قادر خدای د جلوه نمایې نظاره کوي د کاهنانو مشر د نورو کاهنانو په نیابت امیر ته وویل زما په نظر یه سره به

ښه وي چې دا د ملکوت بلبل د مقدس عشتروت د هیکل له څنګه سره ښخ شي په جنازه کښې د ښار ټول وګړي باید حصه واخلي انجونې دې

د مرګ مرثیې وایې او هلوګان دې پر قبر او جنازه باندې په لارکې او یاد دې ئې مراسمو د اجرا په وخت کښې ګلان

شندې ولې چې دی لوی شاعر ؤ نو ښخیدل ئې هم باید په شاندار و مراسمو سره وشي امیر په داسې حال کې چې ټول حواس ئې په ډېر حیرت سره

د شاعر د جسد و خواته متوجه وه بیله دې چې خپلې سترګې دې دده له مخه څخه و بلې خواته واړوي یو واري د

(هو) سر ورته و ښوراوه مګر بیا یې ډېر ژر په ډېر حسرت سره وویل په رښتیا که موږ ددې مړه جسد تکریم او نمانځنه و نکړو نو (آلهه)

او د اد ښتو ټول کاڼي او بوټي به په کهکې را باندې خاندې ښخیده ئې زه دلته مناسب بولم ولې چې روح ئې په

دغه ځای کښې له بدن څخه حق پولیت اخیستي دی بیا ئې

شاوخواته و کتل او هغه فیلسوف

ته ئې اشاره وکړه ورته وې ویل آیا د تناسخ په عقیده سره به داسې وخت راشي چې

زما په روح د یو لوی امیر د جسد جامه او د دغه
نامراده شاعر په روح د دغسی زبردست شاعر
د جسد جامه واغوستل شی او دهغه له طرفه څخه
ئی زړه په صلو او مهربانیو سره چی د ټولو
واکانو خاصه ده خوشحاله شی او د غمجن زړه
نیمه خوا ارمانونه ئی پوره شی.

هندی فیلسوف داسی جواب ورکړ، اعلیحضرته
لکه څنګه چی د ژمی تر تکلیف وروسته د پسرلی
ملایمه هوا راځی او د مړاؤ ګلانو په ارواحو ښکلی
ښکلی نوی قمیصونه اغوستل کیږی همدغه شانته
د هر چا و روح ته بیله استثنا څخه په تناسخ کی

دا حالت پیښیدونکی دی د دې وینا په اوریدو
سره دامیر ګنجی، ګنجی آنډی لږ څه وغوړیدی
او ډیر فکرجن د خپل قصر وخواته ستون شو
هلته ئی هم د هندی حکیم په وینا ؤ کښی چرت
ښندؤ.

# د میلاد ۱۹۱۲۵ کال

## په قاهره کښی

(۲)

د څورلسم سپوږمۍ د حیا ناکی پیغلی په
په څیر سره مخ نیم کښه کـــړ او په زرینو
وړانګو سره ئی پربشار طلایی شال وغوړاوه
د دغی منظری امیر د خپل قصر له څنګه سره
متفکر ناست ؤ کله به ئی و فراخی فضا ته په حیرت

کتل او کله به ئی د نیل په څپو کی د تیرو مشاهیرو
د مجد و عظمت زړی خاطری پلټلی.
او د خیال په عالم کښی به ئی د فاتحو ټولواکانو
د نمائشی نظاره دابو لهول په وړاندی کوله.
ګاهی به ئی پیاد شعبوا او امهود مواکیبو

منظری له الاهرام څخه د عابدین تر قصره پوری
تر سترګو شوری ایسته کیدلی دافکارو د عالم
تر سیر وروسته ئی و خپل نیژدې ندیم ته چی
وانږخ ته ئی ناست ؤ او د قدیمو ؤ نوو شاعرانو

ؤ پر غرا قصید او غزلی ئی یادی وی امر وکړ چی
اوس هم ی په شعری تلازمانو او باریکو سره د
فکری هسیر مجرا ته تغیر ورکړه.
ندیم هم سم له وې امره سره پسله احترامه

له مراسمو څخه د یوې ؤ پری زړې قصیدی په
ویلو پیل وکړ امیر بدغ پر وکړ زاړه فکرونه
وزړو ته پر پرده د نوو شاعرانو په مبتکرو شعرونو
سره می و طبعیت ته فرحت ورکړه ندیم د احترام
سرټیټ کړ او د منحصر مو شاعرانو له شعرونو

څخه ئی یو خوږ جذاب شعر وو ایه امیر بیا ډوغ
پر وکړ ولی پوه نشوی د نوو شاعرانو څخه د یوه
شاعر بدیع شعر وو ایه ندیم د موشیح الدلیی
د مقاطیعو ترنم شروع کړ امیر بیا ډوغ پړ وکړ
تردې لا یو نوی شر وو ای ندیم پسله ډیر تعمق
او تفکر څخه د یوه نوی بکر شعر په ویلو پیل وکړ

چی ټول ادبی صنایع پکښی مراعات شوی او د
نازک خیالی ابتکار کښی ئی ښاری نه د ولوی
امیر ته چی دی شعر ډیر خوند ورکړ نو ئی پوښتنه
وکړه د ادچا شعر دی ؟
ندیم عرض وکړ بادار داد بغلبکی شاعر شعر
دی.

په دې وینا سره یواری د هغه شاعر زوړ نوم
دامیر په خیال کښی ژوندی ؤ او هغه خاطری
ور په یاد شوی چی د مرګ په وخت کښی ئی د

کاهنانو او قایدانو په حضور کښی ډیر بایه شوی
بیانی د نوموړی شاعر د شعر ترزیات توصیف
وروسته ندیم مخاطب کړ او وی فرمایل - ندیمه
شاعر هغه مرغه دی چی له لوړ عالم څخه راځی
او په کښته عالم کښی نغمی وغوی که ئی دلته

څوک قدر ورنکړی بیرته لوړ عالم یعنی اصلی
وطن ته عودت کوی هلته په فضا کښی د ستورو
څخه اودل شوی قمیص ور بخښل کیږی او د قدرت
له طرفه څخه ئی وافکارو ته ملکوتی اثر ورکول
کیږی چی د امیر او فقیر زړونه یو شان وځانته
جلبوی.

د[عطائی] لخوا

# د کندهار د مجلې د مؤسسینو

## سره یو دوې خبرې

د کندهار مجله د طلوع افغان د نشراتي مؤسسې یوه میاشتنۍ خپرونه ده چې تقریباً د لس کلو نو راپه دې خوا خپرېږي او په خپل نشراتي سیر کې ئې د نشیب او فراز ډېرې لوړې ژورې لیدلې دي .

د دې مجلې له پاره به دا کفایت کوي چې وو ایو: دا مجله اوس د کندهار د فکر او قلم خاوندان پېژني او کوم اعتبار چې ئې د هیواد په مطبوعاتو کې پیدا کړی دی نو په دباندې نړه کې هم علمي او ثقافتي مؤسسات د هغې سره اشنادي .

لس کاله پخوا د ازموږ د ښار یو منور لیکوال چې هغه وخت د دې ولایت د مطبوعاتو مدیر و د دې نیک فرهنګي اساس اقدام وکړ .

ښاغلي محمد ولي زلمي چې د دې مجلې د مؤسس حیثیت لري د مجلې د تاسیس په وخت کې د کندهار د یو شمېر منورینو فکري او قلمي همکاري ورسره وعده شوې وه او دا وعده زموږ ښاغلو لیکوالو له خوا تر یو وخت پورې پر ځای وه .

خو ! لکه هر حرارت چې د برودت ته منجر کېږي نو هغه لومړنی تود - والی ورو ورو خاموشه کېدی خو دا مجله چې زه باید اعتراف وکړم په قتباس محکومه شوه.

که څه هم د اقتباس نقص موجود خو د هغې چلونکو د یو مشهور انګلیس ورځپاڼه لیکونکي (سامرسټ موآم) دا مقوله عملي کړې وه چې تر یو بې خونده لیکنې اقتباس هر کله افضله دی)

زه چې پر دغه موضوع یو نسبتاً با مسؤلیته پرغیږم د هغې جنبه رسمي نه ده بلکه ځرنګه چې د دې مجلې د مؤسسینو د ملګري افتخار مې درلود نو یو ځل د وی ته هغه وعدې وریادوم چې د دې مجلې د تاسیس په وخت کې مو سره کړې وې .

زه د دې مجلې د سلفو او حاضرو کارکونکو د کار د لمانځنې په ترڅ کې دا خبره ضروري ګڼم چې زموږ د ښار هغه د فکر او قلم خاوندان چې د شرایطو او مقتضیاتو د پوهنې په اړخ کې د دغې عامه اشتها سره اشنادي چې ئې د لوستنې غذا غواړي دا یادونه کوم چې د خپل ښار د دغې یوې غنیمت نشریې لپاره په قلم او کاغذ ګوتې ووهي .

زه یو ځل بیا د دې ښار محترمو لیکوالو ملګروته دعوت ورکوم چې دا خپله مجله هېر نه کړي او زموږ سره په دغه فرهنګي او ثقافتي خدمت کې ملګري واوسي . په درناوی



د خرقې مبارکې د ودانۍ جنوبي برخه



د خرقې شريفې د ښکلې
ودانۍ د ننه برخه



